**شاه محمود حصين**

# د استاد حبيبي ټولنيز شخصيت
# او د ده ادبي څيړنو ته لنډه کتنه

دداسي يو ټو لنيز ملي **شخصيت**او ستر ادبي او تاريخي څيړو نکي په هکله چې ټول عمر يې **داد ب** ددنيا خورې ورې ښا نگې را ټو لې. کړې اودنوی پو هې په‌رڼا کې يې دخزان وهلي بڼ په غيږکې د هنـــر اوادب دمينه‌وا لو تنده ور ما تــه کړه اود هغه سره يې سم د هيواد دخلکو دپراخو پرگنو **دتاريخ اصلي**جو هر او تاريخي ور کې زير مــې رابرسيره کړې او دنيمې پيړ ی څخه زياتو هڅو له بر کته يې څه دپاسه يوسلو دوه دير ش ډ يـــرشتمن تاريخي او ادبي آثارياوليکل او ياخو يې پر هغو داسي سريز ی‌لمن ليکو نه او تعليقا ت ورزيا ت کړل چې‌وا قعا يې د نا معلو مو او‌ډيرو پيچلو ادبي ،تار يخـــــــي‌او تصو في آثارو اصلي زير مه خلکوته‌رو ښانه کړه څه آسانه کار نه

دی او بی له شکه یوه مجله یی لیکنه یایوه رساله نه بلکی باید
کتابونه‌پری ولیکل شی، نو له‌همدی‌کبله پدی لنډه لیکنه‌کی هڅه کیږی
دده دژو ند،ټولنیز شخصیت‌اوادبی څیړ نو یوډیر لنډبهیر گرا نو
لوستو نکو ته‌ور په گو ته شی. زموږ د هیواد په خوره وره لمن
کی دخود رو یه گلا نو په شا ن دتاریخی، ملی،ټولنیزو او اد بی
شخصیتونو او استعدادو نو پیدا ینبت او راټو کیدنه څه نو ی خبره
نده .ددی استعداد روزو نکی‌اوادپ‌پالو نکی هیواد په خوږه لمن کی‌د
بیلا بیلو قو مو نو او ملی‌واحدونوڅخه دراو تلو سترو شخصیتو نو
مساله چی عمدتا دخلکو په لمن‌کی رالوی شوی او روزل شوی‌دتاریخ
په هره پاڼه کی زمو ږ ترستر گو کیداِ ی شی . بلخی ابن سینا ،
فردو سی ،علا مه البیرو نی ، امیرعلی شیر نوا یی ،خوشحال ختټک،
بایز ید روښان ،سید جمال الد ین‌افغان، فیض محمد کاتب هزاره او
په‌زر گو نو نور هغه ملی‌او تاریخی‌شخصیتو نه دی چی هر یوه دد ی
وطن دپو هی ، ادب‌او تاریخ ځلانده‌ډیوی ته نوی قوت ور کړیدی . د
همدی څو ورو ستیو کلو نو په لړکی ډیرو نامتو مور خینو او څیړو-
نکو زموږ له‌مخی دتل له‌پاره سترگی‌پټی کړی. او که تر او سه لاد میر
غلام محمد غبار او استاد احمد علی‌کهزاد دماتم او ویر نی گلم نه و
ټول شوی دادی د هیواد نا متـــومور خ پیژ ندل شوی ادیب شاعر
او تاریخ څیړو نکی علا مه استا دعبد الحی حبیبی دژو ند په‌وروستیو
سلگیو سره دتل له پاره خپلـــی‌ستر گی پټی کړی او اوس نو موږ
یو او ددغه نا متو ملی، ادبی ا وټولنیز شخصیت دنه ستړ ی‌کیدو-
نکی کار او هلو ځلو هغه ســتــرمزیر مه چی ځانته یو ځا نگـــړ ی
کتابتون تری جوړ یدای شی .

**لنډ پیژ ند لیک:**

استاد حبیبی په دیار لس سوه اته‌و یشتم ه.ق کال کی‌دکند هار
دتاریخی او له‌پیښنو ډك ښار په‌یوه‌داسی مشهوره کور نی کی‌وزیږید
چی دغی کور نی او دوستا نو یی‌داستعماری ضد مبارز ی او چـت
تاریخ در لود . دی په ختټه کاکړاودعبد الحق کاکړ کندهار ی زوی‌دی
دمادی ژو ند نسبی ښه خالت هغه‌ته اجازه ورکړه‌چی دهغه و خت په
ښوو نځیو کی تر پنځم ټو لگی‌پوری‌زده کړه وکړ ی اود دیار لس‌سوه

شپږم ه.ش کال شخه چی لـــــهبنوو نځی شخه ددهد فار غیدو کال دی دښوو نکی پهتو گه مقرر شو .استاد حبیبی دپیاوړی استعدا د لرو نکی و ډیر ژر یی په لیکنو اوځینیشعری پار چو پیل وکړ . او لومړ ی په دیار لس سوه اوو مه.ش کال کی دطلوع افغا ن دجریدی مرستیا ل او تردری کلوورو سته دهغی جریدی مسوول چلوو نکـی شو چی خه نا خه لس کاله یی ددغیجریدی لهلار یسترادبی اوتحقیقاتی خدمتونه وکړه چی دابر خه به ترځانگړ ی ښیړنیلا ندیو نیسو .

دلیکنی له اوږ دوا لی ځخـــهدمخنیوی په هکله باید په لنډه توگه ووایو چی نوموړ ی استاد پهدیارلسسوه شلم کال کی دپښتوټو لنیلوی مدیر او دمطبوعاتو دمستقلریاستمرستیال و اودديار لس سوه شلم کالځخهوروستهیی پهعمده تو گــهدغه دندی ترسره کړیدی دپو هنی دوزارت مشاور،دکند هار دپو هنیرئیس پهچمن کی افغانی و کیــل تجار ، دملی شورا داو می دور یلهپاره دکندهار دخلکو انتخا بــی استاز ی . دادبیاتو دپو هنځـــــیرئیس ،نږ دی دری کاله دکابـ ل مجلی مسوول چلوونکـــی ،د ا فغـانستان دتاریخ دټو لنـ یرئیس او د کابل پهپو هنتون کی استاد.

استاد حبیبی پهپښتو، در ی ،عر بی ، اردو او انگلیسی ژبو کی لوی لاس در لود . دلو مړ یو دو هژبو خوږ ژبی شاعر او ادبیلیکونکی دی دتحقیقاتو عمده ځا نگی یـــــیاسلا می تاریخ، دافغا نستا نلرغونی او معا صر تاریخ ادب اودد ر ی ژبی تصو فی ښیړ نی دی .

**ادبیآثار ،هڅی او ښیړ نی:**

دعلا مه استاد حبیبی اد بی ا وسیاسی تاریخی ښیړ نی لو مړ ی ځل دطلوع افغا ن شخه پیل کیږ یدی دپښتو او دری ژبو روانلیکوـ نکی او شاعر دی دپښتو ملی ژبیاود هغی دادبیاتو دو دی سره دده مینه خورا توده ده . خودغه مینه هیڅکله په دری ژ به او ادبیاتوکی دده هڅی نهکمزور ی کوی دا پدیما ناچی دی دتوپیر غوښتنی اوملی بیلتو ن اچونی شخه سخته کر کهلری . پداسی حال کی چی د خپلی مورنی ژ بی له تاریخ او ادبیا تو سره مینه لری د هیواد دنو روخلکو ژبی ، ادبیاتو ، هنر او فر هنك تهنه یواز ی په درنهسترگه گوری بلکی زیا ت آثار یی هم په در ی ژبه لیکلی دی . چی یواز ی پهادبی

آثارو کی په دری ژبه دده د غـه چـاپ شوی او نه چاپ شوی آثا ر
لکه (پیغام شهید) ( اوه ویشت‌مخه)(زبان دو هزار سال قبل افغانستان
یا مادرزبان دری) ،(نگا هی بـــه‌سلا مان و ابسا ل جا می) (ظهیر-
الدین محمدبابر) ( شخصیـــــت‌سیاسی ، اجتما عی و ادبی بابر )
(ادبیات جهان) (مدو جز ر ا فــغـــانستا ن) (مسدس)، ( لا لــــــه
کوهسار) ،(دفارسی ژبی د نـــو مور کو شاعرانو دشعرو نو دبیلگو
مجمو عه) ،( کلید شهنا مه)( په دری ټوکوکی) ،(نوشته های من )
(ټولنیزی ادبی، تاریخی لیکنی پـه‌دری ستروټوکوکی) اود غه شا ن
دده په‌سلگو نو ټوټی قصید ی ، غزلیا ت ، مثنوی او نوری په‌زړ ه
پوری ادبی ټوټی په دری‌اد بیا توکی دده ستر اودستاینی وړ مقا م
ښیی.

داستاد علا مه حبیبی یوه‌ژ ور ه‌هیله داوه چی دطلوع افغان‌خپرونی
دکندهار په‌ښار کی یواز ی‌په دری‌ژبه‌کیدی او پښتو لو ستو نکوورنه
گټه‌نه‌شوی اخیستی په پښتـــــوخپرو نو واړوی.

ددیار لس سوه‌لسم‌کال د جوزاددرویشتمی نیټی دطلوع افغا ن په
گڼه کی‌یی دلومړ ی ځل له‌پـار ه د(بهترین خدمت ها احیای ز با ن
ملی است)ترسرلیزی لاندی یـــوه‌لیکنه وکړه اودهمدی گڼی په متـن
کی دلومړ ی ځل له پاره یوه پښتولیکنه چی دو خت د(اصـــــلاح)
دورځپاڼی څخه اخیستی شو ی وه‌پداسی ډول خپره کړه چی ټو لو
کلمو ته‌یی دعر بی ژ بی په شا ن‌پیښی ، زور ،زیر ،غړو ند ی‌اونور
قوا عد په‌پام کی ساتلی‌و .او لـه‌همدی لیکنی ورو سته دنهم کا ل‌په
دوه دیرشمه شماره کی دحمیـــدماشو خیل دغه شعر په همغـــــو
اصولو خپور شو .

چی داوسپنو څنځیر شلو ی‌په گوتو
همغـــه‌دیو په او مه تار داحسان نښلی
چی دبل په‌کو څه ور شـــی‌سړی سپک شی
له سا ئلـه‌سره ځکه سگـــا ن نښلــــی

دغه شان د همدغه کال پـه شپږدیرشمه شماره کی د(پښتو ن) تر
نوم لاندی د(شهیدوینی) په عنوان‌یو شعر خپور شو چی دا سی‌پیل
کیږی:

تاتەپه وینو دشهید کی آزا د یخندلی
څکه چی واړه ما ل‌او سر یی په میدا ن با یللـــی

دغه شان لومړی پښتو سرمقاله‌د( شلولرگی دیوه غزی) ترسریزی لاندی داسی خپرېږ ی چی په هغی‌کی دپښتنو لیکوا لواو شا عرانو هڅی راغوښتل کیږی اود پښتو ژبی دادبیاتو د ژ و نـــــــــــد ی کیدو او ودی کار دیو لا س‌مسا له‌نه بو لی په همدی دلیل او اړ تیا په یو څلو یښتمه شماره کی سیدحسین دجر یدی مرستیا ل دشعر په‌یوه برخه کی دغی اړ تیاته داسی‌گو ته نیسی :

دیوه سپېنسی یواز ی شـــه‌زور نشته
چی یو زرشی نور وانښکی‌کی ساز و با ز
په وا ښکی به کاروا نو نـــه‌تړل کیږ ی
یوسپېنسی دی‌دیوی ستنی نیـــاز

داستاد حبیبی تر نــظر لاند ی ،همد غه هڅی‌ددی‌سبب شو ی چی دطلوع فغان پښتانه لیکو ل ا و شاعرا ن دو مره زیا ت شول چی‌د دیار لس سوه یوو لسم هـ. ش‌کال‌نه‌وروسته دغی جر یدی په‌بشپړه تو گه په‌پښتو ژ به خپرو نی پیل‌کړی. پدی خپرو نو کی استا د ـ حبیبی دتاریخی ادبی څیړ نو په څنگ کی د ټولنیز پر خاش اودزور زیاتی پرخلا ف خپله کر که تـــل‌خرگندوله.

که دحبیبی صا حب له اد بـی‌تاریخی سترو خد متو نو څخه په طلوع افغان کی تیر شو نوبه وایوچی دی‌له‌بهرنیو ژبو څخه پښتـــو ژبی ته دکابل په مجله کی لو مړ ی‌هغه‌ژباړ و نکی دی چی ډیره روا نه او ساده پښتو ژباړه کوی.

خو مخکی له دی چی دده په‌ادبی‌څیړ نو خبری وکړ و ښه به داوی چی داد ب او په‌تیره بیا د شعـــــرپه هکله دده نظر ته هم پا ملر نه وکړ و. همغسی چی دنړ ی زیا تره‌ادیبان او کره کتونکی باور لر ی حبیبی صا حب پدی باور دی چـــی(ادب په عمو می مصدا ق بالذ ات مقصد ندی بلکی هرو خت دنـــو رومقاصدو له‌پاره وسیله ده او غایه‌نه شمیرل کیږی) دغه شان دی‌دشعرپه هکله چی شعر دانسان د تخیل، افکارو ،تجر بی او فن کار ی‌زیږ نده‌ده خو شعر ته یو ډول معنو ی‌ارزـ ښت چ ی‌له‌عینی پیښو او پد ید وڅخه دالها م په څیره څرگند یږ ی

قایل دی او شعر ډېرو لطیفو ا وناز کو احساساتو هنری بیان ښیی ځکه‌نو وایی چی (یوه‌ور ځ چا پـه‌رادیوکی شعر ویلی‌و داشی خـــو رښتیا هم دستا یلو وړ دی خو په‌شعر یی هم ظلم کړ یدی نو ځکه داسی ویناته شعر نه‌شوویلا ی هونظمو نه به‌وی داسی خلك مو ږ ه شاعرا ن نه بولو خو (ناظمان ) به‌وی) دی پدی باور هم‌دی‌چی کید ی شی یو شاعریوه مبتذل مضمو ن‌ته‌ښکلی جا مه ور واغو ندی او پـه هنری ښکلا یی سینگار کړی خو دغه هڅی تشی هنری هڅی بو لی چی مضمو ن یی دخپل ابتذا ل له‌کبله کوم خو ندنه‌لری دبیلگی په تو گه دفردو سی دی یوه بیت ته‌گو ته نیسی چ ی‌وایی:

زیزدان بران شاه باد آفر ین
که‌نازد برو تخت و تاج‌ونگین

دعلامه استاد حبیبی په لو مړیو،ادبی کارونو او هڅو کی داحمد ـ شاه بابا ددیوا ن راټو لو نه،سمون‌لمن‌لیك او پر هغه دیوی ښکلـــی ادبی تاریخی مقدمی لیکنه چی لــــه‌دری قلمی نسخو څخه په کی کا ر اخیستل شوی اودغه دری نسخی‌هم دده په‌قول دده سره دمو جوده قلمی نسخی، دکندهار دبلد یه دموزیم دنسخی اود پښتو اکاد مـی دکتابتو ن دنسخی څخه په خـــــه‌دپاسه څلور سوه مخو نو کی جوړ او خپور شویدی اود۱۹ کور نیواوبهر نیو ماخذو نو څخه پکی گټـه اخیستله شویده . دغه راز دپښتو ادبیاتو دزیر مو دخو ندی سا تلوله پاره ده دخوشحال خټك مر غلر ی‌اود عبد القا در خټك دیوان هم د اوږ دو سر یزو ، لمن لیکونو ا و تعلیقاتو سره جوړ او خپاره کړ ل چی‌یوازی دخوشحال پر مرغلرو یی‌څلور اتیا مخه یوه اد بی ،تاریخی، تحقیقی څیړ نه ولیکله. دحمیـــــــدکشمیری اکبر نامه هم دده په‌زیار، تدوین ، تحشیه او تعلیق شوه خودغه اثر چاپ او خپور شو ی نـــه دی.

دسلیمان ما کو په‌تذکره او دپټی‌خزانی په موند لو اوپر هغــــــو باندی دسر یز ی ،لمن لیکو نو اوتعلیقاتو په‌لیکنه سره استادوکولی شول چی دپښتو منظو مو ادبیا تولرغونتو ب له زر څخه تر یوزرودوه سوه کاله پوری ورسوی . استا د دطلوع افغا ن چلوو نکی و چی د (سپیڅلی پښتو) تر سر یز ی‌لاندی‌یی یو لس زریز پښتو دری‌قاموس

ولیکه او هم یی په دری ژ بـــه د(تاریخچه پښتو) تذ کره و لیکله‌چی
په مسلسله تو گه په طلوع افغان کی خپره شوه.

دغه شان نو موړی استا د هغه‌زیار چی د(پښتو ادب تاریخ) لـــه
پاره ایستلی اود هغه په لو مـړی ټوك کی‌یی دپښتو او پښتنو تاریخ
ژبنی اړ یکی ، فونتیکی خرگنتیاوی‌لهجوی حالتونه او تاریخی ډ یر ی
ناخرگندی خواو ی روښانه کړ ی‌او په دو هم ټوك کی یی ترزر می
هجری پیړی پور ی دپښتوشاعرانولنډی پیژ ندگلو ی اود شعرنمو نی
داد بی ښکلی زیر می په‌تو گه را ټو لی کړیدی .

بایدووایو چی دحمید کشمیر ی‌اکبر نا مه، تاریخچه ادبیا ت‌پښتو،
تاریخچه سبکها ی پشتو ، و ضـع‌اصلا حات پښتو ،پښتو خودآموز
دوه ټو که ، پښتو او پښتونوا له،پسر لنی سندر ی (پښتو منظومه)
داستاد هغه لو مړی هڅی دی چی ټو لی ددیار لس سوه نو لسم کال
څخه دمخه ترسره شوی دی . اوپښتو ټولنی ته‌په راتگ سره یـــی
دپښتانه شعرا تر عنوا ن‌لا ند ی ډیری ادبی زیر می راټو لی‌او ویی
خپرولی.

لکه‌څنگه مو چی وو یل استا د حبیبی دافغا نستا ن دنورو خلکو
فر هنگی او ژبنیو شتمنیو ته پـه‌بشپړه درناوی د خپلی ژ بی ا و
ادبیاتو سره ډیره مینه در لوده اوهمد غه مینه وه چی دبینوا صا حب
(دپښتو روز نی) په‌رساله باند ی یی دسر یز ی لیکلو په تر خ کی
ولیکل ( پښتو دایشیا په‌زړه کی دیوه ژو ندی قوم ،ژوندی‌ژبه ده چی
په‌تاریخ کی‌یی زر کلنی سرگذ شت‌له ادبی ارز ښتو نو سره یو ځای
نغښتی دی)).

استاد حبیبی دپښتو ادبیا توله پاره دخپلو هڅو په لړ کی پد غه
هکله دنـــــو ر و آثـــــا ر هـم‌په انتقاد ی او جوړ وو نکـــــی
تو گه وژباړ ل او خپر نه یی پری‌وکړه پدی لړ کی یی دډارمستټر،
گایگر اونورو د پښتو کلما تودتلفظاو حروفو دتاریخ په هکله خپر نه
وکړه او پر هغه اثر یی چی په‌دووټو کونو کی تنظیم شوی لمـــــن
لیکو نه سر یزه او تعلیقا ت بشپړ کړ ل اوددی اثر ژ بنی تیرو تنـــی
یی‌سمی کړ ی.

دډار مستټرپښتوخیړ نی د هغـه‌اثر نو م دی چی پخوا په در ی‌ژبه
ژباړ ل شوی او ورو سته بیااستادحبیبی او عبد الرو ف بینوا هغه په

پښتو ژباړ لی او وړ بدلو ن یی‌په‌کی راوستی دی البته دکتا ب اصل متن ساتل شوی اوژباړو نکوپه‌لمن‌لیکو نو کی دهغه اثر نیمگړتیاو ته گو ته‌نیو لی او سمون یی ور کړی‌دی. دپښتو ادب په‌تاریخ کـــی‌د قصید ی دمضمو ن دپیدایښت ،فنی‌څرگند تیاوو ، ډولونو او مکتبونو په هکله هم استاد حبیبی غور ه څیړ نی کړ ی چی په یوه کو چنـــی رساله کی خپری شوی دی . د غه‌شا ن دده په ادبی هڅو کی دپښتو نثر ته کره کتنه یی هغه اثر دی‌چی‌په دیار لس سوه شپیتم کال کی‌د علو مو داکاډ می له خوا خپورشوی‌دی. ددغه اثر له‌نورو غوره ځانگړ-تیاوو څخه که تیر شو استاد پـــه‌پښتو ژبه کی دلیکلار ی ټا کلـــو معیارونو ته گو ته نیو لی . د غه‌مساله چی دپښتنو لیکوا لو په‌منځ کی دخبرو اترو وړ مساله ده استادحبیبی دخپل پرا خ افق نظر په‌رڼا کی په دی هکله خپل نظر دا سی‌څرگندوی ( زما په خیال د پښتو له‌پاره یو تخیلی یاحقیقی معیارټاکل‌داو س کار ندی او نه داکار یو یا دوه تنه کو لی شی).

معیاری لیکنه هغه‌و خت ټا کـل‌کیدای شی چی دپښتو له ټو لـــو لهجو څخه داجتما عی او مد نـــی‌اختلاط او ادبی گډو ن اوتفا عل په اساس یو ( معیار) راوو ځی . اوتګ راتګ دومر ی پکی زیات شـــی چی‌ټول‌مبهم او خصو صی‌تعبیرونه او اداو ی او گرامری خصا یصـــــ سره گډ شی) دغه لیکنه بی له‌شکه دمترقی ایدیا لوژ ی دعلمـــــــــی پرنسیپو نو پ ربنسټ ولاړه ده .داځکه چی گډه وا حده ژبه دانسا نی ټو لیدنی یا اتنیك جوړ ښت پـــه‌قبیلوی او قو می حا لاتو کی داتنیك جوړ ښت یوه غوره ځانگړ نه جوړوی‌خودغه زما نه لا دبیلا بیلو لهجـو سیمه ایزو ژ بو دبیلوا لی‌بشپړی‌ځا نگړ تیاوی ساتی . اود نـــړ ی دکار گرانو دمشر و.ای. لنین‌دوینا‌سره سم څو درو ند صنعت راجوړ نه‌شی ، او بیلی بیلی قو می پو لی‌ړنگی‌نه کړی تر هغه‌و خته دوا حد (ملت) جوړ یدنه او په هغه کی د ملی وا حدی ژ بی مساله چی دملت دځلور گو نو مشخصو څخه ده اودلهجو له‌یوا لی‌څخه‌را منځته کیږ ی هم‌نه‌شی حل کیدای. نود معیار ی‌لیکنی پوښتنه هم‌چی دژبی‌یوه برخه جوړوی دهمدی حالت تابع گر ځی.او په همدی دلیل دی چی استا د حبیبی دهمد ی رسا لی په‌یوه برخه‌کی دژ بی دتکا مل دقانون په هکله غوره څیړ نه کړیده.

## ټولنيز او سياسي شخصيت:

په ټو لنيزو مسالو کې د شخصيت پيژ ندنه اود هغه مقام ټاکنه يو ه ډيره پيچلې اود پوښتنې وړ مساله ده ځکه دلته دشخصيت مسا له ډير سيااليت اوپيچلتيا لري ځوك دچاله نظره څه ډول شخصيت دی . د کو مې طبقې او کو مو قشرو نو په خد مت کې و لاړ او څه سيا ســي ټولنيز دريځ لری ؟ و لی دټو لنــیدعمو مې جريا ن په دننه کې پـــه اصطلا ح. (بيطر فه) دی ؟ او و لی دغه يا هغه طرف يالوری يـــی ټاکلی ؟ دا او داسې نور ې پـــه زرگونو پوښتنې دانسان دشخصيت ټاکنه ډيره پيچلې او نسبيت تـــه راکاږ ی . استاد حبيبی په دا سې يوه تاريخی دورا ن کې او پـــه داسې يو له پيښو ډك ښار او يو ه استعماری ضد مبارز کور کهو ل کی و زيږ يد ، و روزل شو او د ټو لنی خد مت ته يې ملا و تړ له چې هلته لادمولوی محمدسرورکندهاری مولوی عــبدالواسع ،مولو ی عبــد لرب کندهار ی او په لسگونونورو کسانو دمشرو طه غو ښتنې ، ا واستعمار ی ضد مبارز ی ځپـــــی ژو ندی وې او پـه ورو ستـه کی هم استاد حبيبی د ديار لس سو ه شپږ ويشتم څخه تر ديار لس سوه يوديرشم کلونو دبيلا بيلو ټو لنيزو غور ځنگو نو په دورا ن کې راپو خ شو.

خو لکه څنگه چې وو يل شو لاستاد حبيبی دملی شو را په اوومه دوره کې دکندهار دخلکو له خــوااستازی په توگه شوراته را غی . خو دغه دوره لا پای ته نه وه رسيد لې چې استاد حبيبی په ناخا پی تو گه دخپلې کور نی سره پاکستا ن تــه لاړ. پدغه و خت کې په هيواددمو- کراتيکو مبارزو لمنه داستبدا د د ټولو ټکو نو سره سره پراخيده. او همدغه حالت دی چې داستا د حبيبی سفر ته يو څه په شك ا و ترديد کتنه کيږ ی . ان چې دهــغه وخت فيو ډا لی شورا دده په هکله يوه ظالمانه پريکړه کوی پدې کې څه شك نشته چې د هغه و خـــت پاکستانی دو لت ډيره هڅه کو له چې داستاد حبيبی په شا ن يونا متو ليکوا ل او محقق څخه په خپلــه گټه کار وا خلی او له همدی کبله يې لو مړ ی له هغه څخه څه ناخه ملاتړ وکړ خو څر نگه چې استا د حبيبی يو وطن پرست ټو لنيـــزشخصيت او په خپله خاوره اوخلکو مين انسان و نو دپاکستان دو لت ډير ژر احساس کړه چې د هغه څخه

مخصو صا دپښتنو او بلو ځــــودغور ځنگ پرخلاف نه یوازی گټه نه‌شی اخیستلی بلکی د هغه لیکنی‌او خپرو نی یی دپښتنو او بلو څو دلا هڅو نی علت گاڼه نو ځلکه څه‌موده وروسته یی دکرا چی په یوه مجله کی په ډیره بی شر می په‌هغه‌پسی‌و لیکل چی یو افغانی محقــق له‌پردی ژ بی څخه په‌پردی‌ژبه د پردیو له‌پاره ژباړه کوی اود خپلو زړو کتابونو دپلور لو له لا ر ی ژو ندکوی.

دپور تنی لیکنی سره سره ، د استاد حبیبی دسیا سی ژ و نددغه برخه ډیری‌خیر نی غواړ ی د لتـــه‌غوا ړو چی یو څو شیبی هغـــــ و خپرونو ته مخه کړو چی د (افــغــانستا ن آزاد) په‌جریده کی هغـــه وخت خپریدی او لیکو نکی او چلوونکی یی هم خپله استاد حبیبی ودغه جریده په دیار لس سوه یودیرشم کال کی په‌پیښور کی خپریده .ددی جریدی ددیارلس سوه یو دیرشــم کال د سرطان په اوه و یشتمه گڼه کی‌یو ځای داسی لیکل کیږی.

(اصلی متن په دری ژ به دی اوپه‌ټو ل امانت ژباړل شو یدی )

(زموږ گران هیوادوا ل‌چی‌دهمدی‌یوازنی جریدی نه پر ته د خپلوملی افکارو بل آزاد ترجمان نه‌لر ی‌زه‌درخصتیو پای ته‌رسولو تـــــه اړ کړم ...

(جریده د دوه میاشتی تعطیل نه‌وروسته بیا خپر یږی) زموږ جر ـ یدی په خپلو څو میاشتو خپرو نوسره په ټول هیواد کی ښی اغیز ی کړی. اوسره ددی چی دکا بل ناپو هو او لوټمارو واکمنانو په کلکه دهغی له‌ویش او خپر یدو څخــــه مخنیو ی کړی . بیا هم زمو ږ د آزاد هیواد هر گوټ ته‌رسیدلی دی‌او وړ اغیزی یی کړیدی چی دآزادی غوښتنی عمو می غورځنگ د هغه‌پایله ده ... که څه هم چی او س د هیواد په دننه کی ټول حسا س،بافکره او هیوادپال کسا ن دکابل دو ینی خو ړو نکی حکو مت او د کابل شاهی قصابانو په جیلو نوکی پراته دی( دغه و خت دشوراداومی‌دور ی یو شمیروکیلا ن د فقیـــد محمودی او میرغلام محمد غبا ر په‌گډو ن په جیلو نو کی بندیان‌و) خو موږ هیله لرو چــی دملــی آزاد ی‌پیاوړی غورځنگ نه شی کولی په زور زیاتی سره راو پرزوی داد ناپو هو کسا نو دلږی شیبی بر ی‌او لاس اچونی کټ مټ په توپ باندی‌دایران دپار لمان ویشتلو ته ور ته

دی چی د محمد علیشاه دلری‌کیدواود قاجاری سلسلی دپای ته‌رسیدو سبب شو...) دهمدی لیکنی په‌پای‌کی استاد حبیبی خپل سلطنتی او استبداد ی ضد احساسا ت پدی‌شعر کی ښیی .

دلا منال که دور سخن نخوا هدماند
سرود دشمن‌واندوه من نخوا هد ما ند

چنانکه جلوه مرغ چمن به جا ی‌نماند
سیاه چادر زاغ و زغن نخوا هد ما ند

بهار آید و گل خندد و بگیر یدابر
غبار غم‌به‌عذار چمن نخوا هد ما ند

مدار غم که حقیقت نمی شو د مغلوب
نگین جم‌به‌کف اهر یمن نخوا هد ما ند

رود ز کشور ما (جیش) دیردون پلید
سپاه‌ظلم بخاك وطن نخواهد ماند.

پو ها ند استاد حبیبی پدا سی‌حال کی چی دپاکستا ن جوړ ید ل یی دانګریز ی استعمار له‌توطیو نه‌دډك سیاست زیږنده باله خو ده په همغه هیواد کی هم داستعمار ، اواستعمار روز لو واکمنانو پر خلاف خپله کړکه په ډاګه ښو د له دمثال‌په‌توګه د( افغا نستا ن آزاد) دیوی شماری په‌یوه بر خه کی دا سی څرګندونی کوی (( دسلو کلونو په ترڅ کی داروپا ښکیلا ګګرو د هند وستا ن دساتلو له پاره په افغانستان کی څه وکړ ل . اود استعمارناولی‌مکتب خپلوشا ګردانو ته څه و ر زده کړل . دا همغه سوالونه دی‌چی‌ځوا ب یی دتاریخ په‌پاڼو کی لو ستی شی)) .

په همدی لړ کی استاد حبیبی‌په‌دی باور و چی شاه زما ن ، امیر شیر علی خا ن او امیر امان الله‌خان‌له دی کبله چی دخپلوا کی‌غوښتنی او هیواد پالنی احساسات یی‌لر ل‌داستعمار دژ ور ی کر کی‌اوغوسی سره مخا مخ شول . خو دامیرعبد الرحمن خا ن او نورو په هکله بیاوایی .

(( ددی په خلا ف امیر عبدالرحمن خا ن چی دملت کپری یی په او سپنیز سو ك ټکو له او یاداسی نورو چی ملی فکر یی نه در لود د(ګریفن، کرزن او واترفیلد )له‌پلر نی مینی څخه بر خه درلوده).

ددی خبری یادو ل همضرور ی بریښنی چی استاد حبیبی په پاکستان کی دخپلو سیا سی فعالیتو نو په لړ کی یـواز ی د سلطنتی کور نی پرخلاف دښمنی او مبارزه نه ځوله بلکی ده په خپلو خپرو نو سره د افغا نستا ن دخلکو د هغه و خت زوریدلی حالت ډیر ښه انځور کړی او دی و ضعی ته یی دنړ یوا لو پام را اړولی دی له همدی کبله په یو ه لیکنه کی داسی وایی : (( دنړی هوښیارا ن پو هیږ ی چی داستعما ر دمدرسی دشاگردانو ارتجا عـــــی سیاست د منځنی آ سیا ملتو نه په تور تم ،یوازیتو ب او تیتهانه کی ساتلی دی او په ځا نگړ ی تو گـه افغا نستان په تور تم اوظلمو نو کی دی چی ځوك یی په نړ ی کی دهغه له ویروو نکی او خواشینوو نکی حالت او چنگیز ی ادار ی له کړوو ړو څخه خبر ندی او همد غه شان د آسیـــا دزړه دولس ملیو نی (ملت) د هـر ډول سیاسی ، ټولنیز او مدنی ودی او پر مختگ څخه بی برخی دی او دادی په شلمه پیړ ی کی د کا بـل په شل مید ی کی دمنځنیو پیړ یـــو پوست اغوستو نکی انسانا ن په ډیر ناوړه حالت او بر بریت کی ژو ند کړی او څوك نشته چی ددغو بـــد بختو خلکو غم وخو ری)).

داستاد حبیبی دسیا سی فعـــالیتونو لړی دسلطنت ستنــــــــی لړ زو لی وی. نو ځکه در باریانو دهغه دمرگ پریکړه وکړ ه او داسی تروریستا ن یی ور ته وټاکل چی هغوی ورو سته بشپړ رسوا شو ل او نومو ړ ی استاد هغه و خــــت دغه پیښه په اخبار کی و لیکله او په پای کی یی دغه بیت ولیکه.

بیك ز خم از توقانع نیستـــــم تعجیل ای قاتل

بجا ن مشتا ق زخم دیگری ای عمر تا خیـــری

پدی ډول ددی خپرو نو ټو لـــی خواو ی په ښکاره ښیی چی حبیبی، خپله خاوره خلك اود خلکو گټی نه وی هیری کړ ی خود مبارز ی اوږده لاره چی دلوړو ژو رو څخه ډکه ده کله ناکله دسیاسی مبارزا نو در ـ یځو نو ته بدلون ور کوی اودا چی دهیواد نه بهر دسیا سی مبارز ی سوال څه زیاتی گټی نه لری نو ځکه استاد حبیبی په پاکستا ن کی داوسیدنی په وروستیو میاشتوکی وروورو د سلطنت پر خلا ف ده یرو تندو لیکنو څخه لاس وا خیست اوډیره هڅه یی و کړه چی خپلـ ـــی غوښتنی دگیلی په توگه وړاند ی کړی لکه چی د( افغا نستان آزاد ) په یو شپیتمه گڼه کی وایی :

((و مو ویل او څوځو څله مــوناری سوری وکړ ی چیدمو کراسی راو لی څکه یواز ی په همدیوسیله‌هیواد پیاوړی کیږ ی. دحا کم او محکوم اړ یکی ښه‌والی مومی)).

ددی گیلو سره سره په‌همغــــه وخت کی‌د (کا څ‌تاریك) ترسریزی لاندی دده یو خوږ غز ل خپور شوچی د هیواد سیاسی ټو لنیــــزه او اقتصاد ی‌وضعه یی په ښکلـــی‌هنری ډول انځورکړه او همد غـــه شان یی په همدی وروستیو گنو کی‌یوه فانتیز ی ډوله منظو مه ټو ټـــه داسی پیل کړه.

شنیدم چو تا درشه چیره دست
به‌تخت شهی در خراسان نشست

نبودش چویارای خواندونوشت
بکلی بسا ط خرد در نو شـــت

شبی آمدش فکر شعر و ا د ب
شنیدم که‌بسرود بیت عجـــب

ددی فا نتز ی ډو له منظو مـــی‌وروستی بر خه داسی دوام کوی چی نادر شاه خپل منشی را غوا ړ ی‌اوله هغه‌څخه دخپل شعر دځرنگوالی په هکله پوښتنی خو منشی ده ته مشوره ورکوی چی پـد ی کـــا ر ځان مشغول نه‌کړ ی او همد غه‌علت‌نادر په غوسه کوی او منشی‌طویلی ته‌لیږی خو موده ورو سته بیا بل‌شعروایی او منشی را غواړی منشی چی داشعر اوری دپایته رسید و مخکی دطویلی په‌لور منډه اخلی‌لـــه هغه‌پوښتنی چی و لی‌یی داکار وکړ په‌ځواب کی وایی :

چوبر مملکت سفله‌یی‌یافت دست

داسی ښکار ی چی استاد حبیبی‌دهیواد نه بهر دخپلو سیا ســـی فعالیتونو په‌ورو ستیو میاشتو کی‌ډیره هڅه کو له څو بیرته خپـــل هیوادته‌راستون شی . په هرصورت‌استاد بیرته‌هیوادته خپل پلر نـــی ټاټو بی ته‌راستون شو خو لکه چی‌دوطن فرا ق ډیر ځورو لی‌و نوځکه له‌راستنیدو وروسته یی دسیاست له دنیا څخه لاس وا خیست‌او خپل ټول‌ژو ند ، استعداد او توان یـــی‌علمی، ادبی او تحقیقی کارونو تـــه

وقف کړ او لدی لاری یی دیوه علمی‌تحقیقی او ادبی ستر شخصیت په تو گه خپل خد متونه دزر گو نو مقالو او لسگو نو کتابو نواورسالو په‌لیکلو سره ترسره کړ ل .خوده‌نه‌له دی مخکی او نه راوروستـــه له خلکو او هیوادسره خپله مینه‌نه‌شوی هیرولی نو ځکه‌وایی .

زما نه پر مخ روانه گړ ند ی‌ده
انتظار نه‌کا زموږ دپا خید لـــو

یاران لاړل په چمن کی‌ننداری‌کا
موږ یوپاتی لاپه‌خیر د یخنیو لو

زړه دی سورحیات‌بیخو نده‌سینه یخه
روح آرزوکړ ی دکالبد دتشو لو

- * *

په‌یوه پیاله دی مړ قو م رابید ارکړه
گوره‌ځی مخ دگړ نگ په‌پریو تلـــو

دژو ندون خزا ن به تول بها ر بهار شی
که‌سا قی وکړ ی همت د می و یشلــــو

او یاداسی خپله هیله‌څر گندوی:

رندان میل کاو خپلو میخا نو تـــه
مستی نشته په شیشه‌کی‌دفر نگ

ساقی پاخه جام دمیو عنایت کړه
زاړه می‌راوړه‌ترخه یاقوتی رنگ

**شا محمود حصین**

**علی محمد منگل**

# دلوی استاد علامه عبدالحی حبیبی «پښتو د تاریخ او لغت په رڼا کې» علمي او ژبنی مقالې ته لنډه کتنه

داروانښاد استاد علامه عبدالحی حبیبی دپیژندلیک ،ژوندپیښو، علمی ،ادبی ، تاریخی آثارو او د سلګونو علمی او تحقیقی مقالو په باب به دده شاګردانو ، دوستانو او علاقمندانو ډیری ژوری خبری نی او لیکنی کړی وی اولاز مه ده چې لوی لوی کتابونه و خت په وخت پری و لیکل شی داځکه استاد دعلم او پوهی په ډګر کی مړ نه دی تل ژوندی او نوم یی جاو یدان دی، له دی کبله ضرور ی بولم چی د استاددعلمی ، تاریخی ، ژبنیو اوادبی خدمتونو یادو نه باید کال په کال اود لسیزو په پوره کیدودملی او بین المللی سیمینارونو او علمی غونډو په جوړ یدو سره په درنښت وشی ...

که‌څه هم ماغو ښتل چی‌داستا ددپیژ ندلیك په‌باب څه و کاږ م ،هر څومره لټه می چی وکړه لکه څنګه‌می چی نیت‌و او غوښتل می هغسی یاد ښتونه په‌لا س رانغله ، خو په‌همدی لټه کی‌و م چی د(وږ می) مجلی د دیار لس سوه اوه څلو ښښتم‌کال دجوزا او سرطان ګڼه می تـر ستر ګو شو ه ، د مجلی دا ګڼه‌داستـــاد په دی مضمون ( پښتود تاریخ او لغت په‌رڼاکی) پیل اوښکلی‌شوی‌وه ، همدی علمی او ژبنی‌مو ضوع می فکر دپیژ ند لیك دلیکلو څخه واړوه . خود مو ضو ع دخیړ نی دمخه په‌لنډو تکیو کی دو مـــــر ه‌وایم.

دافغا نستا ن دتاریخی خاو رې‌اود کندهار دشنی او سمسور ی سیمی ددی علمی او ادبی شخصیت‌علمی ، ادبی ، ژبنی او تاریخـــی میرا ث به دافغا نستا ن دټو لوخلکواود علم او اد ب دمینانو په منځ‌کی دیو مد نی میرا ث په تو ګه تـــرپیړ یو پیړ یو پوری په خورا درنښت سره پاتی شی اودده دعلم اوپو هی‌په‌دغو لګیدلیو شمعو (دپښتنوادبیاتو تاریخ لو مړ ی او دو هم‌ټوك،پښتانه‌شعرا لو مړی ټوك ، دافغا نستا ن لنډ تاریخ ،پټه خزانه ، تاریـــــخ‌افغا نستا ن در عصر تیمور یا ن ، طبقات نا صری ، بلاد قدیم‌وتاریخی‌خراسان ، ادبیات جهان د خو شال خټك کلیات ، دعبدالقادر خان‌خـــټك‌کلیات ،زرنج و احوا ل تاریخی آن، سپیڅلی پښتو ... ) به ډیر ی‌تیاری‌نوری پسی رو ښانه و سا تـــــل شی ...

داستاد دغه وړه مقاله چی(پښتودتاریخ او لغت په‌رڼا کی) تر سر لیك‌لا ندی کښل شوی ده ، دنن‌نه‌شپاړ س کاله دمخه لیکل شوی‌چی دپښتو دلغت او قدا مت په‌باره‌کی‌یی‌ډیره لویه علمی ثمره‌بللی شو ،دا وړه مقاله چی دحجم په لحاظ دومره‌لو یه نه ده اود مجلی پنځه دیرش مخه یی نیو لی خو که په‌علمی نظرور ته‌و کتل شی دخو کتابونوسره انډول کیدای شی . دعلامه حبیبی‌دامقاله دموادو له مخی په نهومو ـ ضو عاتو کی کښل شوی چی هره‌موضوع یی ځانته په ځانګړ ی شکل ډیره مستنده ، په علمی دلا یلـــوسره ښکلی شوی او هغه موضوعات دادی:

١ ـ دابو الفضل بیهقی روایت.
٢ ـ دجوز جانی روایت.
٣ ـ قدیم نو مو نه .
٤ ـ دځایو نومو نه .
٥ـ دتولکیانو دوی کلمی .
٦ـ نور جغرا فی نو مونه .
٧ـ دابوریحان په‌آثارو کی .
٨ـ په‌لغت فرس کی .
٩ـ نور لغتونه .

استاد په دغه مقاله کی دژبپوهنی‌له عمده مسایلو سره تماس نیو لی اود پښتو ژ بی دقدا مت‌اولغتو نوپه‌خیر نه باندی یی په خوږه اوروانه ژبه بحث کړی اود پښتو ژ بـــی‌لرغو نتوب یی په ډیرو علمـــی مستندو روایاتو او دلا یلو سر ه وړاندی کړی ،دمو ضو ع نه یی‌د مخه ددی مقالی دکښلو په‌با ب‌داسی‌ویلی دی:(( دپښتو ژ بی پر تاریخ باندی ماد مخه دوه جلده کتابو نه‌اوهم ډیری مقالی خپری کړی دی . چی په هغو ځیر نو کی دځینـــوپښتو قدیمو کتابو نو په سند د پښتو ادب تاریخ لر څه خر گنـــدشوی دی . مگر ما دمخه ځنی‌مقالی داسی هم لیکلی وی چی په هغوکی‌دپښتو ژبی پرو جود باند ی دځینو نورو ژ بو دتاریخی کتابو نو پـه‌رڼاکی ځیړ نه شوی وه.

او س ځنی ځیر و نکی غوا ړی‌چی هغه مطالب پریوه ځای راټو ل شی چی په‌یوه مجمو عه کی سره راغونډوی ... ))

تر دغو لنډو خبرو ورو ستـــه‌استاد دپښتو دتاریخ‌اوپښتنو سره‌د نورونا خوالو په‌باره کی داسی په خوږه او روانه ژ به وایی :((زمانی زمو ږ پښتنو او پښتو تاریخ سره‌ډیر ی ناوړی کړی دی . او زمو ږ داسلا فو آثار یی داسی را خخـــه‌محوکړی دی چی او س یی په ډیر زیار او کړاو موږ لږ لږ خر ك په خوراور کو پاڼو او لیر ی گو ټو نو کی مو مو)).

دپښتو ژ بی دتاریخ او موا دو دالږ لږ خر ك چی نن موږ ته ر اـ رسیدلی داهم دعلا مه استاد په‌لټه‌او خورا زیار سره ترسره شوی‌چی له دی کبله دده نو م دپښتودتاریخ‌او ادب دخد مت په‌لار کی نـــــه

هیر یدونکی گنهل کیږی ... استادپښتو دقدامت اود هغې دځر کډ ځای په باره کی دمقالی په سریزه کی داسی اشاره کړی ده:(( دپښتـو ادب دری لرغو نی کور نی او سموږ په ملتان او غز نی او غور کی پیژ نو چی دغور دسور یانو دامیر کروړ جهان پهلوا ن یوه حماسـی ټوټه پښتو شعر تر ټو لو پخوا نی دی اود هجرت د یوسلو دیر شم کال په حدودو اړه لری . بل هغـه پښتو یو بیت دی ، چی دغز نـی په لویکانو پوری اړه لری دیو سلو پنځوسم هجری کال په شاو خواکی او وروسته د ملتان دلود یانو اشعاردی)).

دلوړ بیان نه استاد د هغه وخت دنورو معتبرو آثارو په استنا د دا نتیجه اخلی چی پښتو ژبه په هغه وخت کی په یوه لو یه سیمه کی خوره او معتبره ژبه وه چی دا سـی اشاره یی په لنډو خو ړو ټکیو کی ور ته کړی ده :(( له دی ټو لـو آثارو څخه دا ښکار ی چی داسلا م دراتګ په و خت کی یو زر اودیرلس سوه کاله پخوا، پښتو ژبه له ملتانه تر باد غیس او خراسانه پور ی یوه ژوندی ژبه وه اودرانه او پا خـه اشعار یی لرل)).

استاد دمقالی دسر خبرو دلمنی په برخه کی خپلی دغی علمی ،ژ بنی او مقایسوی غوره در ند ی موضوع ته دننوتلو دمخه څو مره په روانه ژبه ځیر شوی اوداسی وایی : ((پدی ځیر نو کی زه په خپلـه دغه راپاته شوی آثار نه ځیړ م اوکه څو ک وغواړ ی تفا صیل یی زما په نشر کړ و او چاپ شو یو کتابو کی لوستلا ی شی لکه پټه خزانه او لومړ ی ټوك پښتا نه شعرا اود لویکانو کتا ب او پښتو ادب تاریخ لومړی او دو هم ټوك . اما پدی لیك کی غواړ م چی ځنی خار جی او له دغو منابعو څخه بیل نور تاریخی دلایل سره راغونډ کړ م اوداخر ــ ګنده کړ م چی بیله دغو کتابو آ یادپښتو دو جود پر قدا مت باند ی کوم نور دلایل او اسناد هم شته که یه ؟او که شته نو هغه کوم اوڅنګه دی ؟ او له کو می خوا مو ږ ته په لاس راځی ؟دپټی خزا نی په استناد چی له ځینو قدیمو کتابو څخه یی نقل کړی دی داخبره ښکار ی چی دغور دپاچاهانو داسلا فو سوریانوژبه پښتو وه ، او ددوی یوه نیکه امیر کروړ په پښتو شعرو یلی و. ددی مقصد دتایید له پاره بیله پټی خزانی نور خار جی دلا یل له فارسی معتبرو کتا بو څخه داسی دی:((د

تاریخي مستندو روایاتو په رڼا کې داسې ښکاري چې د اسلام په اوایلو کې بیاتر غزنوی او غوری عصره پورې غوریانو غیر له فارسي ژبې څخه یوه بله ژبه هم لرله ، چې دد غوزما نو دمور خانو په نو شتو کې کله کله دغې ژبې ته تصریح یا اشاری مو ندلې کیږي)) .

لوی استاد دمقالې دسر له خبرو څخه وروسته چې پور ته ځای ځای ور ته اشاره و شوه دمقالې لوم ړ ی موضوع ( دابو الفضل بیهقي روایت) له مخې ځیل عالمانه نظر څیړ لی اودانتیجه یې ور څخه اخیستې چې په حقیقت کې دپښتو دقدا مـــت او ځانګړی ژبې بڼه ور څخه لـــه ورایه معلو میږ ی ، موږ ددې خبرې دسپیناوا لی دپاره دمو ضوع څو ځایه چې استاد دیو معتبر سند په رڼا کې څیړ لی را اخلو اودا به جو ته شي چې داژبه هغه و خت هم ځانګړ ی ژبه و ه . استاد دبیهقي دروایت له مخې وایي : دغز نو ی دربار دغه لوی مور خ د امیرمسعود دغور دفتو حاتو او سفرو په تر ځ کې دتاریخي بیهقي په یو سلواوه ـ لسم مخ کې داسې لیکي :( امیـــرمسعود حر کت کرد بران جانـــب (جروس غور) جای در میش پت...دانشمند ی رابر رسو لی آ نجـــا فرستاد با دو مرد غور ی ... تـــاترجمانی کنند).

علامه استاد دابو الفضل دد ی روایت له مخې په څو مره پو هـــه سره اټکل کړ ی اود استاځیو ژبه یې ځانګړ ی بللې چې دهغه و خت مستقله ژ به وه ،وګور ی چې په څومره خواږه انداز سره یې داموـ ضوع په روانه ژبه څرګنده کړ ی ده:(( دبیهقي له دی تصر یحـــه ښکار ی ، چې دسلطان مسعو د دانشمند استاځی دغور یانو پهژ به نه پو هیدی او دوه تنه غور یان یې دترجمانی له پاره ور سره بوتلل . دسلطان مسعود دربار ی استا ز ی خو حتما په فارسي پو هیدی ، نو معلو مه ده چې دغوریانو ژ بـــه فارسي نه وه چې هغه تر جمان ته اړ شوی و ... دبیهقي په لوړ بیان کې هرو مرو مقصد هغه څوك د ی چې د دانشمند استاځی وینا دغور یانو پهژ به دوی ته ژباړه کې ځکه که یواز ی دسلطا ن د استا ځـــی مقصد رسول وای ، نو هغه په ځپله پوه او دانشمند او دسلطان مسعودد دربارسړ ی و ، بل منځګـــړ ی ته یې څه ضرورت و ؟ او که دغور یانو پهژ به پو هیدلا ی نو بهیې دوه غور یان له ځان سره و لی دترجمان په توګه ملګری کول ؟))

استاد دبیهقی له روا یت نـــه‌داسی عالمانه نتیجه اخیستی‌اوواییږ:
((دسلطان داستا ځی ژبه‌بیله و ه‌اودغور یا نوژ به بیله وه ، او ځکه
چی دهغه‌و خت دغز نی در باررسمی'و ادبی ژبه فارسی وه، او ټو ل
در باریا ن حتما په فارسی‌پوهیدل‌نو داله ورایه ثا بتیږی ، چـــی‌د
غور یانو ژ به کټ مټ د دربارفارسی‌نه‌و ه او ځنی غور یان په‌فارســـی
نه‌پو هیدل)).

دمقالی دو همه مو ضو ع استاددجوز جانی روایت له مخی خیږ لی
او پدی برخه کی یی خپل عالما نه‌مستقل نظرورکړی او اول یی‌دد ه
پیژ ندنه هم په‌گو ته کړ ی اووایی:((دغوریانو دعصر یو ډیرسترگه‌و ر
او پوه مور خ قا ضی منهاج سراج‌جوز جانی دی ،داسړ ی دغوریانوپه
در بار کی لوی شوی او په‌با میانواو فیروز کوه اود غور په ټو لـــو
ښارو نو کی گر زیدلی‌و ، دی عالم'و فقیه او سیاسی سړ ی و ،اد یب
او شاعرو ، بصیر مور خ‌اودفارسی‌او عر بی پو خ‌لیکوال و دغوریانو
له‌بابته دده معلوما ت عینی‌او خوراثقه او درانه دی مگر دا مور خ‌په
پښتو نه پو هید ،خو په خپله د شمالی افغا نستا ن سړ ی اود لی
زیږیدلی اود غور یانو سره محشوراو معروف و)).

استاد وایی چی ده هم په‌طبقا ت‌ناصری کی څو ځایه د غور یانو و
بیلی او ځانگړ ی ژبی ته اشار ی کړ ی، دمثال په ډول دلو مړ ی‌ټوك
په دری سوه دری اتیایم مخ کـــی‌وایی:(( و به‌لفظ غور یا ن شیث‌را
شیش خوانند)) . بل ځای‌دسلطا ن‌علاو الدین غور ی دتولك په فتح
کی‌وایی :((وبز با ن ایشا ن با لا دوانید ن و به نشیب دوانیدن‌اسپ
... راگویند)) .

لوی استاد دجوز جانی دد ی‌بیان‌په‌رڼا کی په خپل عالمانه او درانه
نظرسره په ډاگه کړی ده چی : ((ښه ؟دالفظ غوریا ن و زبان ایشان
کومه ژبه وه ؟ که‌فارسی وای ، نودمور خ دغه تصر یح ته څه‌ضرورت
و؟ دبیهقی او منها ج سرا ج لدغوتصر یحاتو څخه فقط دانتیجه‌راباسم
چی غور یانو یوه خا صه ژبه یالهجه‌لرله او په‌فارسی ښه‌نه‌پو هیدل)).

علا مه استاد ددی دپاره چی دا ژبه معلومه کړ ی نوداسی یی پـــه
عالمانه نظر خیږی:(( اما داخبره‌چی‌دغوریانو ژبه نو کومه وه؟ پدی‌برخه
کی‌یی‌ویلی: دسلطان مسعودعصر خوپس له څلور سوه یو ویشتم هجری

څخه شروع کیږي چې دبیهقـــي په‌قول دسلطان استا ځي دغوریا نو له‌پاره ترجما ن ته اړوه ، مگر په‌پټه خزانه کې دد غو غوریا نو له‌در باره مو ږ ته پښتو شعرو نه ا و قصاید لا س ته‌را غلي دي .که څه هم‌پر مو جود او معلوم شي باندې‌دلایل ویل ، دحاصلو تحصیل‌دي)).

داستاد له دې مستقل نظر نه‌بل‌لوی‌ژ بنی او تاریخي دلیل دد ه د مقالې دریمه موضوع قدیم او ځنډن‌نو مو نه دي چې دا مو ضوع‌په‌خپله برخه کې نوې اود استاد دابتکاراتو په‌جمله کې شمیرل کیږي ، دي دا مو ضوع( قدیم نو مو نه) دا سې پیل کوي چې مو ږ به‌یې دلې څـو ځایه دمثال دپاره راواخلو :((دغور یانو داسلا فو په‌نو مو کې، اکثـر پښتوکلمې دي او دابنکاره کوي،چې‌دوی پښتانه وو .مثلا قا ضي‌منهاج سراج ددوی دلوی نیکه نوم شنسب‌لیکي اوددوی کورنی آل شنسب او شنسبا نیا ن بو لي)).

لوی استاد ددې نو م د پښتو جوتونې دپاره داسې ژ بنی دلیل راوړ ي(( دانوم ځنې خلق شنسب‌دشین او سین په زور تلفظ کوي، مگر ددې تلفظ له‌پاره کوم اد بي یاتاریخي تعلیل نشته او صحیح تلفظ یې پښتو دی شین اسپه چې په آس تسمیه دقدیمو خلقو عا م‌رسم و، لهر اسپ، شیده اسپ،زر یسپ،گشتاسپ دقدیمو با ختر ي‌پهلوا- نانو نو مو نه تهول دغسې دي ، اوشین اسپه هم دزما نې په مرورسپک شو، حرف علت یې‌ولاړ اود شین‌په‌کسره دنون په فتحه شنســـب پاته شو)).

تردې کلمې وروسته استاد یوه بله کلمه تر څیړ نې لا ندې نیو لې چې سو چه پښتو ده او اوس هم‌استعمال لري:(( له دې کور څخــه دنو رو امیرانو نو مو نه لکه امیر پولاد، امیر کروړ چې طبقا ت‌ناصري او پټې خزانې راوړي دي سو چه‌پښتو دي اود منها ج په قول‌دهارون الرشید عبا سي خلیفه په عصر کې‌دغور دوه تنه امیران سیس‌اوبنجي نو میدل ، چې املا یې په خطـــي‌نسخو کې سینس هم ده))

استاد ددغو دوو نو مو نو پـ ه‌تفصیل کې‌ویلې چې پښتو ریښه‌لري اوربښتیا هم پښتو ښکار ي‌و گوري‌چې په څو مره روښانه دلیل یې په علمي شکل ثابتوي :(( په پښتو کې‌تراو سه هم سیسې دیوه دښتې‌مرغه نوم‌دي چې کندهار کې ښکارکیږي.اود مر غانو په نو مو کې تسمیه‌هم

خورا ډیره ده ، لکه کو تان، توتی، بلبل ، کجیر او نور . اما بنجی هم دپنځیدل له مادی ځخه د مخلو قاومو جود او نشوو نما کوو نکی معنی لری ، پهپښتو قدیم ادب کی پنځ دجها ن او و جود او پیدایښت په معنا راغلی و، شیخ متی وایی:

چی سو ښکاره ښکلی دنیاسوه
دپنځ پر لوری یی ر ڼا سو ه

لکه دهیون تسنګ چینی زا یرله خا طراتو ځخهچی ښکاری (شین یو راز آس و ، چیپه افغانستان کی پیدا کیدی ، نود غور ی قدیمو امیرانو نو مو نه لکه شنسب، پولاد، کروړ، سیس ، پنځلی ټول پښتـــو ښکاری )) .

پدی برخه کی پهتیره دسیسد نا مه پهباره کی یی پهزیات تفصیل علمی مواد او دلایل دشمهنا می د اشعارو په استناد راو ړی او پـــه خپله ځیړنه کی یی ثابته کړی چیداکلمه پښتو ده ، ددی دپاره د استاد مقاله پهوړ مه مجله کی پهتفصیل سره و ګوری چید لته د موضو ع داوړ دوا لی لهکبله موږور ځخه ډډه کوو...

دارو ا ښاد استاد ددی درند ی مقالی ځلور مه مو ضو ع( دځا یو نو مو نه) پهباره کی ده ،ده دهغه وخت د ځایــو نو مونه د تا ر یخی معتبرو آثارو له مخی ځیړ لی چیپه مستندو دلا یلو یی داسی ثابت کړی چی دهغه ځای ( غور) نومو نهپښتو دی او اوس یی هم ریښــــه مو ندل کیږ ی ،دمو ضوع په پیل کی پهعلمی اوژ بنی لحاظ دغیغوری موضوع تهځیر شو ی او په خوږهژبه او دلیل سره وایی :(( دغورد ډیرو پخوانو ځایو ، نو مو نه هم پښتو دی . دژ بی اثرو نه لکه د سړو په نو مو کی چیپاتیږ ی ،دځایو پهنو مو کی هم ښکار ی . یو قوم دخپل کلچر نخښی دانسا نیژو ند په ټولو اړ خو نو کیپریږدی. زما ن، مکان ، چاپیر ګر ده دد غونخښو دانعکاس موارد دی .دځایونو نومونه دیوی ژ بی دقدامت پا خه دلیلونه دی او که مو ږ پهتاریخ کی دپخوانو ځایو اود غرو او درو په نو مو کی دپښتو بو لګی او نخښی وینو، نو دا زمو ږ دژ بی د تاریخیاصا لت ټینګ اسناد دی )).

ددی خبری دښی جوتو نـــی دپاره مو ضوع نوره هم په ژ بنی او علمی لحاظ ځیړیاوداسی خپلیپهنظر کی نیو لی مو ضو ع ته په

ساده او روانه ژبه ځير شوی :(که‌په دوو زرو کالو لرغو نو آثاروکی دغه زمو ږ سپين غر په لږ لهجوی بيلتو ن سپيتا گو ناگر ی بلل‌شوی دی ، نو دا خو خا ص د پښتوسپين‌گو نی غرو ، نه دفارسی سفيدکوه چی يو محدث او نوی را غلی‌مجهول‌نوم دی )).

علا مه استاد لکه چی د مخه می‌اشاره وکړه په غور کی پښتونومونه څيړی اوداجوتوی چی په غور ی در بار او غور کی پښتو اوپښتا نه وچی دی کی کوم شك نشته پد غه‌باره کی داسی وايی:

((دلته زما مقصد په لرغو نی غور کی دپښتو دبولگو او پا تـــو نخښو پلټنه ده . که څو ك دپښتووجود ته په غور ی دربار کی‌دشك په‌ستر گه گور ی ، نو دو ی بايدقديمو غور يانو در جالو اوځايونو نو مو ته ځير شی که هلته پښتو نه‌وای نوددو ی په‌نو مو کی څنگه دی ژبی خپل اصيل او پاخه ثرو نه‌پريښی دی ؟))

ده ددی لوړ ی خبری د پاره د څو ځا يو نو مونه دمثـال په ډول راوړيدی چی لدی نه بل‌لوی د ليل‌او ښه ثبو ت موږ نه شو پيداکولای اوددی خد مت په اثر داستاد اروانښاد ه غواړو ، استاد وايی :(( د منهاج سراج په قول دفيروز کوه‌په‌ماڼيو کی يوه ډيره لوړ ه او ښکلی ماڼی بر کوشك نو ميده . دانو م ځينو ناپو هو ليکوا لو مسخ کـــړ او بز کوشك يی و ليکی . مگـــرصحيح پښتو شکل يی بركوشك دی. دپښتوبر کلمه دلوړ او عا لی‌په معنا دځايو په‌نو مو کی تراوسه هم شته لکه بر ارغنداو ، بر گرش،برپښتون ،بر درانی ، اودسيستا ن په‌تاريخ کی برزره يعنی زره عليا هم دغسی نوم و)).

علا مه استاد زياته کړی او وايی((منها ج سرا ج ددی ما ڼی لوړتيا داسی ستا يی:(وآن قصر بركوشك‌عمار تی است که در هيچ ملك و حضرت مثل آن بارتفاع و تدو يرار کان و منظر ها وروا قا ت‌وشرفات هيچ مهندسی نشان نداده است.))

له دی نوم پر ته استاد د هغـه‌ځای يو بل نو م ته‌چی په زين ـ الاخبار کی يی ليدلی ځير شو ی‌اودايی ښکاره کړی چی دانوم پښتو دی اود پښتو اصله ريشه لری : ((دغور يوه بله مشهوره کلا بر ه غونډی نو ميده ، چی دغه نو م هم‌دگرديزی په‌زين الا خبار کـــــی (بر غند) او په‌تاريخ بيهقی کـــــی(بز غند) ضبط شو يدی‌اودراور ته‌ی

دطبقا ت نا صر ی په قلمی نسخوکی (بر غند) و، اودی وا یی چیدا نوم سو چه پښتو دی)).

استاد په خپل عالمانه نظر سره‌دا خبره زیاتوی او رښتیا هم ده : ((په قلمی کتابو کی خونو مو نه اکثر مسخ کیږ ی لکه چی دغه نوم حمیدلله مستو فی په تاریخ‌گز یده‌کی(غند) لیکلی دی )).

داستاد دی ژ بنی او علمی‌مقا لی‌بله غوره مو ضوع ( دتولکیانو دوی کلمی) ده، په دی بر خه کی استاددمنهاج سراج د غور دمور خ‌له قول او روایت نه په ژبنی او عــــلمـی‌استدلال استفا ده کړی اود هغه د روایت نه یی دوی کلمی پښتوگڼلی‌چی داد لوی اوعلا مه استاددابتکار څر گنده او علمی نخښه ښکار ی ،دکلمو دتحلیل نه دمخه د غـــــورد مور خ روایت لیکی او په‌روا نه ژبه‌وایی: (( منهاج سرا ج دغ ورمورخ دسلطان علاو الدین حسین په‌احوال‌کی لیکی : چی ده دتولك كلا پس‌له شپږو کلو زیا ره ونیوله . بیا نووایی: شاعری بود درحصار تولك، اورا عمر سراج گفتند ی. درو قتی‌که جنگ به‌آخر میشد و قلعه تولك رابه صلح فتح میکرد ، این بیت بگفت ،لایق بود آورده شد :

بر اسپ نشسته و ور لك‌بولك
مقصود تو، تو لك‌است‌اینك‌تولك

وبه‌زبان ایشا ن بالا دوانید ن‌وبه نشیب دوانید ن اسپ را ور لك بولك گو یند)).

لوی استاد په خپل عالمانه نظردغور د مور خ له دی بیا ن څخــه غوره علمی استفا ده کړ ی اودخپل‌نظر په‌رڼا کی داسی لیکی :(( داچی منهاج‌سراج دتولکیانو ژ بـــــــه(وبه زبـان ا یشان ) بیله گڼی‌دارا ښکاره کوی چی دهغو ژبه فارسی‌نه‌وه . ښه چی فارسی نه‌و ه نوکومه ژبه‌وه ؟ دلته خو دسر یا نی یاعربی‌یا سنسکر یټ یا مـغو لی ســوال نشته خود غه ژبه‌به یاد فارسی‌کومه‌لهجه وه یا به پښتو وه . ښه ، نو دغه‌ور لك بو لك دکو می‌ژبی‌تور ی‌ښکاری ؟زما تخمین دادی ، چی دا کلما ت هم پښتو دی، ځکه چـــــی‌ددو همی کلمی املا وی په خطـــی نسخو کی فولك ، تولك ، بولك‌دی‌او دغه آخر نی شکل یی صحیـــح دی. په پښتو کی ځینی صفا ت‌لروچی دکاف په الحاق جوړیږ ی،لکه نازك، چخنك ، لشمك او نـــور قبیح صفات . په‌لوړ بیت کی هم‌د

تولك شاعر د سلطا ن دشپړو کالوکړاو په ملنډ یزو صفاتو ځغندلی دی. لو مړی کلمه لهوړ ل څخه ورلك جوړه شوه یعنی وړو نکی اما دو همه کلمه لهبیول څخه بیولك دهیعنی دآس بیوونکی چی پهفارسی رسم الخط کی (ړ پهر) اوړ ی او دبیول حرکی یا هم حذ فیږ ی لکه ددغه مصدر په ځینو مشتقاتو کی لکه بوت ، بوز ی ، ځو ور لك او بیولك دآس سرهدتگ و دو کوونکی او ځغلوو نکی معناور کوی او شاعر وایی: دا چی ته آس کښته پور تهوړ ی او بیایی ! که مقصد دی تولك دی راشه دا یی ته، دایی تولك ))

دعلا مه استاد داژ بنی تحلیل اوابتکار دیو روښنا نه ځراغ اهمیت لری چی ډیره تیاره موږ تهپه خپلو ارشاداتو رڼاکوی . دد غو دووکلمو لهتحلیل څخه وروسته استاد داسیددی ژبی دثبوت دپاره خپل عالمانه نظرڅرگندوی :(( دغور په دربارکیخو فارسی پهښکاره ډول مو جودهوه حتی چی ددغه سلطا ن علاو الد ینډیر فارسی اشعـار منـهاج سراج رانقلوی ، مگر پښتو هـم هـلتهوه خلق پهپو هیدل اودغور یا نو اسلا فو په دی ژ به شعرو نه هم ویل ... یوه ژ به چی ادبی متعدد آثار یی په دربار کی ښکارهوی ،دخلقو پهوینا او نو مو اود ځا یواو پدغه محیط کی دژو ندانه دوری همځغلولی و ی نو هغی ژ بی حتمـا دبلادو په آسما وو کی ټینگیرینښیتیری کړ ی وی. او ځکه چی تر او سه لا هم دغور ځینی قدیـم خلق لکهتیمنیا ن او زوریا ن پښتووایی، نو ترد ی بل ټینگ دلیل به څهوی چی پخوا هم ددو ی ژبه پښتووه)).
دحبیبی صا حب ددی مقالی بلـــهبرخه( نور جغرا ،فـی نومو نه) باندی ښکلی شویده چی دابر خه داروا ښاد استاد دعالمانه لارښود نو په رڼاکی دپښتو دتاریخ قدا مت مو ږتهپه ښهشا نراجوتوی ،دد یمقصد دپاره په خپله لوی استاد دد غـو جغرا فیی نو مو نو دمخه دا سی وایی :( دخراسا ن پهجغرا فی او نورو نو مو کی دپښتو دکلما تو او اغیزو څرك ایستل په ژ بنیو پلټنوکی یو گټور مقصد دی او مو ږ ته دپښتو قدا مت او تاریخیاصا لتراښیی په دی څیړ نوکیبه زه د مشهو رو مور خانو په قول ځنـیکلمات وڅیړم چی له هغو څخه د پښتو اغیز ی پهقدیمو زما نو کی ښکاره کیږی)).
استاد په پور ته مو ضوع پوریمربوط څلور لغتونه ( اواره ،سپین ځای ، سیور ی ، او چ) راو ړ یاود هغه و خت دمعتبرو اسنا دو

څخه یې اخیستی او په هر اړخ خیزدول یې څیړ لی دی، دڅیړ نې په
تر څ کې یې داپه ډاګه کړ ی چې دانومو نه او س هم په پښتو کـــې
ژو ندی دی او پخوا هم و چـــې دخبرې دپوره روښا ن تا به له پاره
بهٔ یې دهر لغت دتحلیل او څیړ نې دپاره موږ لږ څه برخه دلوستو نکو
دپاره وړاندی کړو دزیات تفصیل دپاره دعلا مه استاد مقاله په وږ مه
مجله کې و ګوری:

۱ – اواره :

ددغې کلمې په باره کې استا د خپل نظر داسې څرګندوی:(( پـــه
پښتو کې اوار دفارسی هموار او عربی مسطح په مقابل کې یو صفت
دی، چې مو نث یې اواره په جغرافی لحاظ هغې مځکې ته وایی ، چې سمه
وی اودعر بی جغرافیا وا لو پـــه اصطلاح هغې ته سهول وا یې .د
پښتو نستا ن دیو سفزو په سیمه کې داباسین راپدې خوا دپیښور تر
شماله یوه سر سبزه مځکه پر ته ده ، چې او س یې هم خلق سمـــه
بو لی (۱) یعنی دشما لی غر نی مځکې په مقابل کې داعلا قه هموار ه
او سمه سطحه ده. او کوم و خت چې یو سفز ی داته سوم هجر ی په
حدودو کې پردی مځکې قابض ا و میشته شو ل ، نو دوی هم دامځکه
سمه وبلله او مو ږ داخوند درویزه په تذ کره او مخزن کې دد غې مځکې
له پاره دغه نوم و ینو ، چـــــــې وروسته دتواریخ افغا نیه مو لـــف
حسین خا ن او پیر معظم شاه د تواریخ ر حمت خا نی لیکوا ل ا و
افضل خا ن خټك په تاریخ مرصع کې همد غه اصطلاح دد غې مځکې
له پاره راوړ ی . مګر له تار یخـــې پلټنو څخه داښکار ی چې د غه سیمه
پر دغو مځکو دیو سفزو له را تګه سره استعمال شوی ده اوتردو ی د
مخه نورو قدیمو پښتنو د غه مځکه اواره بلله . او بابریې په خپل تزك
کې په فارسی اصطلاح ( همواری) بو لی...))

---

(۱) په منګلو کې او س سم اوسمه د هوار میدا ن او ډاګ اوهوار
ځای په ما نا استعمالیږ ی ، په دې ولسی بیت کې چې منګل یې وایی
وګوری:

سم ته شه راټوټه                    دسم ژړې توتیان جونه بلبلې
داپدې ما نا چې دلوړ ی او غره نه اواری او سمې ته راشه .

## ٢ـ سپین ځای :

ددغی پښتو کلمی په‌با ب چی‌په‌جغرا فی نو مو نو پور ی اړه لری استاد د معتبرو اسنا دو له مخـی‌داسی په خو ړه او روانه ژبه څیړلی ده اودپښتو و جود یې ثابت‌کړی((علا مه ابوریحا ن البیرو نی ،د قانون مسعودی په‌نهم باب کـــــی‌دښارو دطول او عر ض په‌جدو ل کی یو ځای اسپید خا ك ذکرکوی.دغه نوم تر البیرو نی پخوا،په‌حدود العالم کی سفنجای او په القد سی‌کی اسپید جه‌و ، چی په چینـــی منابعو کی سپین جای ضبط شو ی‌دی . اوددی نا مه ډیر قدیم شکـــل پښتو دی. مار کوا رټ په‌ایرانشهر کی‌وایی: چی دغه ځای او سنـــی پښین دی ، چی په جنو بی پښتو نستان کی دکوږك هاخوا پرو ت دی. پښین خو دپښتو نخوا یو ډیرمهم او قدیم ولایت دی چی‌پخوا نی نوم یی پښتو سپین ځای‌و، خـــوروسته‌په فارسی اسپید خا ك او سفنجای شو . او دا هم د پښتـــوکلماتو وجود په اسلا می او لـــو وختو کی ثابتوی)).

## ٣ ـ سیور ی :

اروانښاد استاد ددی پښتو کلمی‌دجغرا فی نوم په هکله دا ســـی دمعتبرو اسنا دو په‌رڼا کی پـــه‌عالمانه ارشاداتو اشاره کوی :

((سیور ی په پښتو سا یی ته‌وایی و دایوه ودانه سیمه ده چی ، د کندهار دکلات جنو بی خوا ته. پرته او هوتك پکی اوسی. دمرحوم حاجی میرویس خان در نه کور نی‌له دغه‌ځایه وه او تراو سه هم د کلات سیور ی هر څوك پیژنی .له‌قدیمه جغرا فیا وا لو سیـــوا ی (او سنی سیوی د بولا نها خواته)چی والشستان کی واقع و ه او دغه سیوری سره گډ کړ ی دی . البیرو نی په قانون مسعو د ی کی سیوای داو سنی بلو چستا ن په ښاروکی په صحیحه تو گه‌راوړ ی. ابو الحسن علی بیهقی ( متوفا پنځه‌سوه پنځه شپیتم هجری ) په خپل کتاب جوا مع احکام النجوم کی چی‌دری ټو که قلمی نسخه یی دتهران په‌کتب خانو کی شته ، امام‌حسن،بن احمد بن عبد الرحمن را ښیی او وایی ( الساکن بسیور ی مـــن‌نوا حی بست) چی دغه کلمـــه‌د کاتبانو په غلطی (بستوا ی) شوی‌ده. مگر دبیهقی په‌بل کتاب شر ح نهج البلاغه کی دغه کلمه هم‌دد غه‌سړی له نا مه سره سمه لیکلی‌ده،

چی( الامام الحسن کان مقیمابیسواری وناحیته بالشتا ن من نوا حـــی بست) نو سیوار ی دغه او سنی سیوری دی او با لشتان هم تراوسه دکندهار شمال ته دتیری اودیراو ت سره په غریزه سیمه کی شته، چی قدیمو مور خانو او جغرا فیا وا لوهم پیژاند)).

**٤ـ اوچ:** ددغی کلمی دتحلیل او څیړ نی په بر خه کی دا ســـی وایی:(( په بر سند کی یو ځای تراو سه هم او چ نو میږ ی. دا ښار په اسلا می او لو و ختو کی مشهورو علی بن حا مد دچچنا می لیکوا ل په دغه ښار کی او سید او منها ج سراج جوز جانی دطبقات نا صری مولف هم له غز نی څخه دد غه ښار پرلار هندته و لاړ .دا ښار دمورخانو په قول دسند حضر ت یعنی پایتخت واو ډیر اسلا می پو ها ن اوستا نه پکی وه چی تراو سه یی بقایا تـــر نوری مځکی لوړ داباسین پر هغـــه غاړه په بر سند کی ښکاری .

ددی نا مه ریښه تراو سه هم په پښتو کی ژو ندی ده( او چت) هر لوړ شی ته وایی چی او چتول او مشتقات یی هم په خبرو کی وایو. داکلمه په واخی لهجه کی هم او چاو په منجی کی (اچ) شته ، پـــه سنسکر یت کی هم او چ په فلکی اصطلا حاتو کی د( کلا یمکس) له پاره و اود فارسی او گ یاا و ج هم دخوارز می د مفاتیح العلوم په استناد هم له دغی ریښی څخه دی. دابناریی ځکه او چ باله چی سطح اوودانی یی لوړ ه او اوچته وه او په پښتو کی هم تراو سه ژو ندی او مستعمله کلمه ده ،چی اثر یی په پخوا نـــوجغرا فی نو مو او فلکی علمـــــی اصطلا حاتو کی ښکاره دی ، او دفارسی ادب اوج کمال هم له د ی ریښی څخه وی)).

داستاد د مقالی اوو مه بر خه (د بوریحا ن په آثارو کی) ده، اروا ښاد استاد دابوریحا ن البیرو نی آثار لوستلی او په ژور نظر یی تر مطالعی لا ندی نیو لی دهغه په آثارو کی یی پښتو کلمی پیدا کړی چی اوس هم په پښتو کی ژو ند ی دی،دده دابر خه هم په خپل ذا ت کی یوابتکار او لوی خد مت بلل کیږی موږ به دلی دپښتو کلمو دڅرگندونی دپاره دده له مقالی څخه څوځا یه دمثال په ډول راواخلو او دابه جو ته شی چی استاد دخپل علمی نظر په رڼا کی دا موضوع څو مره په زړه پور ی تفصیل سره څیړلی ده : ((ابوریحا ن البیرو نی چی دځلور–

سوه دیر شم هجری په حدو دوکی دافغانستا ن او هند په گوټ گو ټ کی گرزید لی او هر ځای یی علمـــی او ژبنی تحقیقا ت کړی دی . په خپلو کتابو کی ډیر داسی کلما ت راوړی چی هغه سو چه پښتـــــو دی)).

تردی لنډو خبرو ورو سته علا مه استاد چی دابوریحا ن دالصید نه خطی نسخه لوستلی په هغه کی یی پښتو کلمی پیدا کړی او وایی:

((مثلا دالصید نه د خطی نسخی پریواویایمی پاڼی لیکی: بری زیتو ند پښتنو په غرو ( الجبال الافغا نیه) کی کیږی چی دا نی یی کوچنی وی او دو ی یی (ښو نی) بو لی دانوم د کاتبانو په تصحیف شو لنی یـــا شو یی نو شته شوی دی خو اصلا یی پښتو( ښونی) یا(خو نی) د ی چی مفرد یی ښو نه ده ...))

له دی کلمی پر ته لوی استاد بله کلمه هم دالبیرو نی په آثارو کـــی پیداکړ ی او لکه چی د هغی په باره کی وایی : (( دالصیدنی په شلم مخ کی هم دغه محقق بوټ پیـــژانـــد(نبات شناس ) لیکی ، در خـــداو زابلستان تر منځ په در مشا ن کی یو راز بری پیاز پیداکیږ ی چی ډیر کوچنی او سره یاسپین وی داپیازترخه نه وی او په سالن کی اچو ی او کوك یی بولی . دغه کوك دپیازپه معنی تراو سه هم دغر نیو پښتنو په محاوره کی دی خوپه ښارو کی پیاز بولی اودپښتو په قدیمو متلو کی هم راغلی دی ...))

استادوایی :(( بل یو مشهو ر نبات چی بیرو نی په الصید نـــه یو اتیایمی پاڼی کی راوړی دسیستان دمجوسو په ژبه بوی هر بذان دی چی په هندی یی مهلت بو لی او دغه نبات به زر د شتیا نو په خـــپلو اخترو او هد یرو کی دوداوه او په زابلی ژ به یی ملخج با له دا نوم په پښتو کی تراو سه هم شته او ملخوزی یی بولی چی پاڼی یی پخوی اودانی یی دلنگوښځو په غذا کـــی په کاریږی)).

ددی دپاره چی استاد خپله مو ضوع ښه جو ته کړی وی اود پښتو دکلمو قدا مت اود ژ بی تاریخ یی جوت کړی وی نو پدی باره کی په څومره انداز سره داسی وایی :

((دالبیرو نی له دغه تصر یحـــه ښکار ی چی زابلی ژ به پښتو وه او ملخو ځی په هغه و خت کی هم دنباتاتو پو ها نو په پښتو پیژند ی

پەفارسي دی دانو او بوټي ته شنبلیله یاشنبلیت وایي چي عر ب یي حلبه او انګریزا ن یي فینوګریك بولي)) .

استاد پدی غوره علمي او ژ بنی‌ځیړ نه کی دځو نورو پښتو کلمو ذکر کړی چي له دی څخه دپښتو دوجوددلیل‌ښه‌راجوتیږی :(( بله‌کلمه چي البیرو نی دزابلستا ن له ژ بی‌څخه راوړ ی شیڅه ده چی‌دالصیدنی پر یوسلو اتمی پاڼی باند ی املاشیخ لیکلی شوی ده . دابو تهی پەپسر لی شین کیږ ی او ځینی‌خلق‌یي پخوی ابو بکر بن علی بن‌عثمان دالصیدنی فارسی مترجم وایي چي داګیاه په فارسی شراش او په فرغانی ژ به شیشغ او په عر بـی‌خنشي بو لی :(وبرګ این نبا ت را درفصل بهار بپز ند وبخو رندوبیخ آنرا در وقت تعذر غذابجوشنند تاتلخي او دفع شود و در عو ض‌طعام بکار برند) له دی کلمی څخه موږ هم دالبیرو نی په تصر یـح‌معلو مولا ی شوای چي‌دزابلستا ن دخلقو ژ به پښتو وه . او شیڅه بها ری ګیاه ددوی په ژبه‌البیرو نی ضبط کړ ه...))

پدی برخه کی اروانباد حبیبـی‌نوری کلمی هم څیړ لی دی چي د زیات تفصیل او معلو ما تو دپاره دده مقاله دوږ می په مجله کـی وګوری .

داستاد ددی وزینی او درندی‌مقالی اتمه بر خه ( په لغت فر س کی) ده، پدی بر خه کی یي هم‌پښتوکلمی دیوه معتبر څنډ ن‌او لرغو نی اثر له مخي دژب پو هنی په رڼـاکی څیړلی او وایي :(( دفارسی‌لغت قدیمترین کتاب چي او س پاته دی‌علی‌بن احمد طو سی د(څلور سوه‌ پنځوسم هجری) په حدو دو کـی لیکلی دی دیوه ګیاه ذ کر کو ی چي نوم یي غرواشه و ،او جی‌لاګان‌یا چمیارا ن هغه سره‌وتړ ی او او په پەپاشي . ددی لغت له‌پاره اسد ی‌دلبیبي دغه بیت شا هدراوړ ی :
چو غروا شه ریشي بسر خي‌وچندان‌که ده ما له ازده یکش بست‌شاید.
داکلمه چی‌دیوه ګیاه‌نوم دی اصـلاغروا ښه یعنی دغره ګیاه وه او دواړ ه اجزایي پښتو دی )) .

له دی نه‌علا وه بله کلمه چي‌لوی‌استاد څیړ لی او وایي :(( بله‌پښتو ژو ندی کلمه خاشه ده ، چـی اسدی یی هم دریزه کاه و جو په

په کلمه کی دپښتود تورکښ مفهوم دمقایسی په ترڅ کی موندلی دي چی زه یی مطابقت سم بولم .

دا باید ووایم چی داستاد افغانستان بعد از اسلام ددوو لومړیو هجري پیړیو مفصل تاریخ دي چی اصلاً یو ټوك دي ، خو په دوو لو یو برخو کی چی هره یوه برخه په علیحده توګه دیوه مستقل کتاب په حیث چاپ شوي ده . لومړي برخه څلورفصلونه لري چی لومړي فصل یی داسلام در اتګ په وخت کی دافغانستان حالت ته وقف شوي او دوهم فصل بیاد عربی فاتحانو لښکر کشیو ته ټاکل شوي ده . دغه فصل دزیاتو منابعو په تیره بیا عربی منابعو باندي ولاړ دي او زیاتره دعربی فاتحانو فتوحات بیانوي دریم فصل دابومسلم خراسانی دازادي غوښتنی غورځنګ ته تخصیص شوي دي . تر ټولو وروستی فصل یعنی څلورم فصل ډیرزیات دارزښت وړدي چی پکی دخراسان اقتصادي او ټولنیز حالت بیان شوي دي .

اوي استادپه لومړي دویم اودریم فصل کی نهایت زیات زیار ایستلی دي او دافغانستان تاریخ داسی برخی یی پکی شرحه کړي چی دافغانستان په نورو تاریخی اثاروکی نشته .دیوه مورخ نوښت هم دادي چی دتیرو مورخینو اقوال او روایات ولولی اوله هغو څخه یو علمی اومستند اثررا وباسی لوي استاد دپریمانه عربی ماخذ وپه اساس دافغانستان تاریخی پیښی څیړلی دي په تیر بیادافغانستان اقتصادی اوټو نیزحالت څیړل دهجرت په لو مړ نیودوو پیړیو کی یوارزښمند کاردي چی تاریخ یی له وچ حالت څخه ایستلی اوپه زړه پوری بڼه یی ورکړی ده . که تاریخ یوازي دقهر مانانو کیسی اردشاهانو حوادث او درهبرانو وقایع ضبط کړي نوداسی یو تاریخ د تاریخ اصلی مفهوم نه لري که داسی تاریخ له یوي خواوچ او لوستل یی خسته کوونکي دبلی خواد تاریخ اصلی علمی هدف هم ترسره کولی نه شی.متبحر استاد دتاریخ په علمی اړخ باندی زورا چولی اوهغه یی په خوره ژبه کښلی دي . استاد نه یوازي قهرمانان او ددوي پیښی څیړي بلکی دافغانستان د تاریخ دد وولو مړنیو هجري پیړیو په باب یی عامه اولس اوخلك هم ددغه دوران دتاریخ په بهیر کی له پامه غور ځولی نه دی.دخلکو ژوند ، لباس، دودونه اداره اقتصاد تجارت او صنعت یی په مستنداو مفصله توګه بیان کړي دي.

**اوس غواړم دخداي ښبلی علامه استاد په (تاریخ افغانستان درعصر ګورګانی هندباندی څوکر ښی یادونه وکړم .**

دغه اثر قدرمن استاد نـﺴﮋدی۴۳ کاله وړاندی لیکلی دی اودهغه په تالیف کی یی له (۱۱۱) کتابونوڅخه استفاده کړي ده استاد هڅـه کړي چی په هند کی دنادرشاه تـر برید پوري دګور ګانی کورنی تاریخ ولیکی او په دغه لیکنه کی استادزیاتره دافغانستان پـه ارتباطپیښنی ذکر کړي دي . دکتاب له متن څخه موږ تـه داجوتیږي چی محترم استاذ په دغه اثر کی بیاهم دتاریخ لیکنی لـه علمی اسلوب څخه کار اخستی دي . دمثال پـه ډول استاد دبابـر پیښنی او دواکمنی حالات په کرونو لوژیك ډول راوړي او بیایی ددغـو تولو پیښنو څخه پـه پاي کـی یـوه نتیجه را ایستلی ده زه به پـه یوڅه تغییر سره هغه دلته راوړم (دبابر عصر په افغانستان کی د ګډوډی، وینی تویلو او نارامی وخت دی په تیـره بیا بابر ددي سره سـره چی شخصاً عالم اوادیب وپښتون اوافغان آزادی خوښو نکی خلك یی سخت وځکول اوپه بی رحمی یی ورسره رفتاروکړ .بابر په ماورا ء النهر کی دخپلو پرلپسی ماتو دجبران له پاره په افغانستان کی زیات شمیر بی ګناه خلك تباه اولـوټ کـړل او دهغـوی دشتـو پـه راغونډ ولـو سـره یـی دهند پـه پراخ ملك باندی دبـرید انرژي واخستله په دي ډول له ملی نظره بابر ښه پاچانه ؤاو دده دوره پـه افغانستان کی یوتیاره دوره ده.

دافغانستان ملی تاریخ به هغه یوغاصب پاچا وشمیري چـی په هند یـی دپښتنو (لودیانو) شاهنشاهـی غصب کړه او دده او لادي له افغانی ازادي غوښتو نکو سره بی رحمانـه چلندته ادامه ورکړه (۷) ....

استاد دبابردځاي نیونکو اواولادي سلوك په افغانستان کـی دپښتنـو پـه خلاف دبابر په خیر شمیرلی دي اوزه به په دغه باب هغه نتیجـه دلته راوړم چی علامه استاد دهغوي د۲۴۰ کلوزمامداری (۹۱۰هـ-۱۱۵۱ه) پـه باب کښلـی ده

((پـه هندکـی دګـور ګانیانو غـور ځنـګ او دخپلـی خپلواکی اوحاکمیت دحاصلـو لوخـر ګنـدوي ده ځکه هغوي له ډیري زمانی راهیسی پـه خپلو غروکی په ازاده توګه په خپل ویاړمن ژوند بوخت وواوددوي پـه ملی چاروکـی چاماداخله ونه کړ خو کله چی بابر په هند کی کور ګانـی سلطنت تاسیس کـړد افغان پـه ازادي مینو خلکویی برید وکـړ اوغوښتل یی چی ددوی خپلو اکـی له منځه یوسی .

له دي امله څوځله له دغه غربـی اولس سره وجنګید اوله دغه وخته دمغولـو سـره دافغانـی ملـی جهاد غورځنګ په ټوپـو راغی اوتر ۲۵۰ کلوپوري لـه مغلو سـره رزم دوام وموند .مغلواو صفو یانوخپل ټـول

قوت په دغوغر نیو سیموکی تمام کړ.دابايد ووايو چی افغان ملت په دغه وخت کی صرف په خپلو غروقناعت‌دراود او دپر دیو لاس یی هلته لندکړي و. څرنگه چی صفوي اومغولی یر غلگرو هغه ځای ته هم سترکی نیو لی وي نوځکه افغان‌زړوراولس ورسره دوه نیمی پیړی وجنگید دزمریو افغانانو آزادي بښونکی غورځنگ په دغه اثر کی په جلاتو گه بیان شو.

دمغولو په باب دافغان ملت کرکه دهغوي دملی شاعرانوله شعرونو څخه په ښه توگه څرگند یږي‌اوهغوي تل ورڅخه گیلی کړی‌دي.

حتی‌د(پښتنوالی) دانسانی‌اوملی‌نورډودپه مقابل کی‌د (مغولیت)دظالمانه دود اصطلاح معمول شوه .........

((کله چی مورد مغولو په باب‌ددغو ملی شاعرانو اشعار وپلټونو دغسی مثالونو یکی موندلی شوچی‌دهغود ظلم قساوت او دهغوي په خلاف دکرکی‌نمایندگی کوي .دپښتنواوافغان ملت ستر شاعر فیلسوف اوحکیم خوشحال‌خان‌ختک دخپل‌عمر به وروستی شیبه کی داوصیت وکړ: ماهلته ښخ کړي چی دمغلولوسیوري یی په قبرونه لویږي!او دمغولود پښو گردیی په خاورو توي‌نه شی .

((ملی شاعر حمید ماشو خیل په‌دغسی غمجنه توگه له مغولو څخه یادونه کوي :

پر تمام جهان قراره قراري ده

پر حمید دغم مغول راو خاته په بل‌ځاي کی مغلواله داسی بیانوي یو به نسم مغلو اله در قیب ستاپه رښتیا که زین ولی پښتنی‌وم

له مغلواو څخه داشان کرکه زیاتره دهغوله خواپه افغان ملت باندی دزیاتوظلمو نو دکیدلولوتونووژلو او نوروبد مرغیو څخه حکایت کوی .لکه دتیمورهم عصر اکبرزمینداوري چی وایی :

دمغولو تمر هسی‌په اورو سوم چه به هیر په دي ماتم زمینداور کړم

((په پښتو نخواکی دبابر اوددهداولادي بی رحمی دافغان ملت‌کرکه دمغواو په خلاف را وپاروله اوهمایون دازادي غوښتنی روحیه اودغرونو دساتلو فکر لاپسی ټینګ‌کړي او مغولو تر پایه پوري ونه شول کولی چی په دغوازاد وغرنیوسیمو حکومت وچلوي .))

((دهنـد گورگانـی پاچا هانو بـه رښتیا هم‌په هند کی دعلم صنعت، اوهنر له پلوه خدمت تر سره کړاودود انیو پـه جوړولو او دادب او صنعت دشهکار و نوپه رامنځ تـه کوکوکی‌یی زیاتی پیسی و لګولی‌خو دوي (دغی مدنیت پالنـی او هنـري‌ذوق څخه زموږ په هیوادکی کومـه ښښه نښانه نه لیدل کیږي اوپه دي‌سمسوره خاوره کی دمغولو له دوري څخه یوازي وینی‌تویول قهر اوجګړه‌پـه یاد پاتی دي .

((په دي سبب زموږ ملی تاریـخ‌پوهاند حق لري چی ددغو پیښوپـه رڼاکی دهند گور گانی شاهان دظلم‌اوتـورتم کابوس وبولی او دهغوي دوره له ملی پلوه یـوه تیاره اوبدمرغه دوران وشمیري (۸)

پـه هـر صورت استاد دهند دګورګانـی شاهانـو پـه دوران کـی‌د افغانستان تاریخ پـه علمی اسلوب‌لیکلـی دي . داځکه چی‌پـه لومړي سرکی کتاب پـه زیاتو معتبرو ماخذوبنا شـوي دي .استاد دغـه منابع تحلیل کړي اوبیایی په خپلو خوږه‌ژبه ترتیب کـړي دي . پـه لازمـو ځایوکـی یـی دایګرامونه او پورتریتونه پري علاوه کـړي دي . نـه یـوازي یی دتاریخ مواد ترتیب‌کړي‌بلکی په ژور علمی نظر سره‌یی په هغو قضاوت کـړي او نتیجی‌یی تري‌ایستلی دي .

دااثر د (٤٣) کلو مخ کی وختـیـوکتاب دی چی استاد په پوره علمی قوت‌سره دهغه په لیکلو بریالی شوی‌دی. که داستاد اوسنـی تاریخـی اثار لکه دافغانستان بعد از اسلام‌اونور ورسره په تله کړو ، دابـه څرګنده شـی چـه فاضل اوعلامـه‌استاد دوخت په تیریدو هـریونوی اثر دنویو علمی څیړنو او موادو په‌رڼاکی پـه نوی فکر او نوی بنـه وړاندی کړیدی .

---

**مأخذ ونـه :**


۱ـپوهاند عبدالحی حبیبی، دافغانستان لنـډ تاریخ ، کابـل ۱۳۵٦ لومړی ټوك سریزه .

۲ـپـوهاند عبدالحـی حبیبـی‌دافغانستان لنډ تاریخ کابل ۱۳۵٦ لومړی ټوك لومړی مخ .

۳ـپـوهاند عبدالحـی حبیبـی،دافغانستان لنډتاریخ .کابل ۱۳۵٦ لومړی ټوك ۱۱۸ مخ

٤ـپـوهاند عبدالحـی حبیبـی،دافغانستان لنډ تاریخ کابل،۱۳۵٦ لومړی ټوك ۱۲۱ مخ

٥ـپـــوهاند عبدالحــی حبیبـــی افغانستان بعد از اسلام کابل لومړی
ټوك لومړی برخه ١٦ مخ
٦ـپـــوهاند عبدالحــی حبیبـــی افغانستان بعداز اسلام کابل ١٣٥٧
لومړی برخه ٦٧ او ٦٨ مخونه
٧ـپـــوهاند عبدالحــی حبیبـــی تاریخ افغانستان در عصر گورگانی
هند کابل ١٣٤١ـ٣٢ مخ
٨ـپـــوهاند عبدالحـــی حبیبی، تاریخ افغانستان در عصر گورگانی
هنـــد ، کابـــل ١٣٤١ ـ١٣١ـ١٣٤.مخونه .

یادونه : ددي مقالی قضاوتونه په لیکوال پوري اړه لري .

میر احمد گوربز

# پوهاند حبیبی او علمی سیمینارونه

پوهاند عبدالحی حبیبی دافغانستان ملی علمی شخصیت وده په هیواد کی دننه اوله هیواد نه بهر په ډیرو ملی او بین المللی سیمینار ونو ، کنفرانسونو اوسیمپوزیمونو کی گډون کړی ، په هرسیمینار کی یی علمی مقالی لوستی د دغو علمی مجالسو په علمی مباحثو کی یی برخه اخستی ، اوپه هیواد کی دننه دزیاترو علمی او تدارك د کمیسونو نو غړی ،او په ځینو سیمینار نو کی د علمی غونډو ددایمی رئیس په توگه هم پاتی شوی دی په کومو سیمینار ونو کی چی استاد حبیبی گډون کړ ی په لاندی ډول ښودل کیږی .

۱ــ د تاشکند پوهنتون د پنځه ویشتم کال ۱۳۲۵ هـ ، ش جمرا ــ سمو په نمانځنه کی برخه اخستنه. د ژوندون مجله ــ دریمه گنه ۱۳۶۱

۲ــ په ۱۳۲۶ هـ ش کال په دهلی کی د افغانی کلتوری هیئت غړی مخکنی مجله .

۳ــ په ۱۳۲۶ هـ ش کال د لاهوراو رینتیل کنفرانس کی گډون مخکنی مجله .

٤ــ د خواجه عبدالله انصاری دمړینی دنه سوم تلین په سیمینار

کی چی په ۱۳٤۰ هش په کابل کی جوړشوی ودسیرت و ابتکارآثارشیخ الاسلام خواجه عبدالله انصاری ،په نوم گڼوره مقاله لـوستـی وه.
(عبدالله انصاری هروی) ملی دفاع مطبعه میزان ســـال ۱۳٤۱ ـ ص ۵۹ .

۵ـ د عبدا لرحمن جامـــــی دیا دو نی په غونډه کی چی په۱۳٤۱ ه ش کال د تاجکستان په دوشنبه کی جوړ شوی و گډون مخکنـــــی مجله .

٦ـ دنور الدین عبدا لر حمـــن جامی دزیږ یدنی پنځــه سو مـــی کالیزی سیمینار چی ۱۳٤٤هـ ـش په کابل کی جوړ شـــوی او د (طریقت جامی )ترعنوان لاندی مقالی لوستنه دتجلیل پنجصدوپنجا همین سال تولد نورالدین عبدا لرحمـــن جامی کابل مطبعه دولتی ســـــال ۱۳٤٤ ـ ص ـ ۱٤

۷ـد ایرا نپیژندنی کنفرا نس چی په ۱۳٤۵
ه ـ ش کال په تهران کی جـــوړشوی و برخه اخستنه د مخکنـــی مجله .

۸ـ د سیمینار ترجمه ، د جوزاد.۳ نیټی نه دسر طان تر څلو رمی نیټی پوری په کابل کی جوړ شویو ، د دی کنفرانس ریاست په غاړه در لود په دی کنفرانس کـــی دوسایل و شرایط تر جمه وتاریخچه آن په نوم مقاله لوستی وه‌سیمینار ترجمه کابل ۳۰ جوزا ـ٤ سر طان ۱۳٤۵ .

۹ـ د خطی نسخو کنفرانس چی په ۱۳٤۵ کال په کابل کی جـــوړ شوی ، ددایمی ر ئیس په‌توگه.

۱۰ـ د خطی نسخو بین المللـــی کنفرانس د رئیس په‌توگه ، چی د اسد په اتمه نیټه کال۱۳٤٦د کابل پوهنتون په تالار کی دایر شوی و د آریانا مجله ـ اسد و سنبــــــله۱۳٤٦ ـ ص ۱۰۹ .

۱۱ـد کوشا نیانو د ۱۳٤۷هـ ش کال په کنفرانس کی چی دتاـ جکستان په دو شنبه کی جــــوړشوی و گډون د مخکنی مجله .

۱۲ـ ۱۳٤۸ ه ـ ش کال داوزـبکستان پایتخت سمر قنـــد کی د تیمور یانو د هنر په سیمپوزیم کی فعاله برخه اخستنه دمخکنـــــــــی مجله .

۱۳ـ د خواجه رشیدالدیـــــن فضل الله دیاد ونی غونډه مشهد، تهران ۱۳٤۸ هـ،ش .

۱٤ـ په ۱۳٤۹ هـ،ش کال په کابل کی دکو شانیانو دسیمینار رئیس.

۱۵ـ دشیخ طوسی په زرمه کالیزه کی گډون ۱۳٤۹ هـ،ش مشهد.

۱۷ـ دفتح پورسیکری په سیمینار کی گډون اگره ۱۳۵۱ هـ،ش

۱۸ـ دبیرونی دزرمی کا لیــزی رئیس کابل ۱۳۵۲ هـ،ش کابل.

۱۹ـ په دهلی کی دامیر خسرو دمجلس غړی ۱۹۷۵ ع کال.

۲۰ـ دمولوی بلخی د سیمیـنار غړی کابل ۱۳۵۵ هـ،ش .

۲۱ـ دبیهقی په سیمینار کـی گډون ایران .

۲۲ـ د روښان د نــــړی وال سیمینار په مناسبت ۱۳۵۳ جـدی ۱۳ په کابل کی جوړ شوی ودرو ښان اود د ه‌غور ځنګ په نوم مقاله لوستی وه دروښان یا دپه زیـاراو اهتمام پښتو ټولنه ۱۳۵۵ـمخ ۲٦۵.

۲۳ دابو نصر فـارابـی د نمـا نځنی ۱۳۵٤ هـ ـ ش کال په غونده کی چی په کابل کی جـوړه شوی وه برخه اخستنه مخکـــنی مجله .

۲٤ـ د منځنی آسیا د ژبی اوادبیاتو بین‌المللی غونډه ۱۳۵٤ هـ ش کال په تهران کی جوړه شو ی‌وه غړیتوب در لودل دمخکنی مجله.

۲۵ـ د دقیقی بلخی دمړینی په زرم تلین کی ۱۳۵٤ هـ ـ ش کال لیندی له لومړی نیټی نه تر اتمـی مخکنی مجله .

۲٦ـ دامیر خسرو د یا دونی نړ بـــو ا ل سیمینا ر چـی د رادیو د کنفرا نسونو په تالار کی جوړ شوی و، د خلجیان معا صر امیر خسرو وهویت تاریخی شا ن تر عنوان لاندی مقاله لوستی وه . د آریانا مجله جدی ـ حـــوت ۱۳۵۳ .

۲۷ـ د پښتو خیړنو د نړیـوال سیمینار چی دپښتو ټولنی په زیار په ۱۳۵٤ هـ،ش کال جوړ شوی‌و. په‌دی سیمینار کی ده د پښتو ژبی موقف د مرکزی ایشیا د خلکو پـه تمدنونو کی موضوع باندی رڼــا اچولی وه دکابل مجله ۹ گنـــــه ۱۳۵٤ هـ ـ ش کابل م مخ ٤ .

۲۸ـ د خــــو شحـــا لـــ لـــومړی سیمینار د خو شـــحا ل دمړینی ۲۸٦ کابل دتلین په مناسبت ۱۳۵٤ هـ ـ ش کال په نړیواله سویه په کابل کی جوړ شوی و ،دخو شحال خان خټك د جها نــــدا ری

نظریه‌د ستار نامه ته‌یوه‌مقایســـو ی‌او تحلیلی کتنه و داسلافوله‌آثارو سره یې پرتله د موضوع په‌باره‌کې‌مقاله لوستی وه . ننګیالی پښتو ن پښتو ټولنه کال ۱۳۵٤ .

۲۹ـ روا بـطه افغا ن وهند پـه‌سیمینار کی «دیوان‌بیدل بخطا و » د عنوان په‌نوم مقالی لوستنـــه ادب‌مجله دریمه ګڼه ۱۳۵۵ .

۳۰ ـ د خواجه عبدالله انصاری‌دزیږ یدنی د زرمی کالیزی په‌غو ـ نډه کی چې په ۱۳۵۵ هـ ـ ش‌کال‌په کابل جوړ شـوه وه . منـاز ل السا یرین یاصد میدان در دایـرةالو جود عرفـان مقا لی لوستنه،د آریانا مجله حمل ـجوزا ۱۳۵۵ ص۷۸.

۳۱ـ د پښتو په دوه ورو ستیوپیړیو کی سیمینار چی په ۱۳۵٦ هـ ـ ش کال په کابل کې‌جوړشوی‌او پوهاند حبیبی د دی کنفرانس رئیس او دپښتو نثرله‌نونسمی‌پیړی‌راهیسی موضوع ښه روښانه‌کړ ی ده زیری‌جریدی ۲۱ ګڼه ۱۳۵٦ .

۳۲ـ د سنا یی د نه سوم تلین‌دنمانځنی په ویاړسیمینار کی‌سنایی دوفات کال اود ده مرثیه تر عنوان‌مقالی لوستنه‌زیری ۳۰ ګڼه ۱۳۵٦.

۳۳ـ د کوشا نیانو د بین‌المللی‌سیمینار ۱۳۵۷ هـ ـ ش کال پـه کابل کی جوړ شوی و . برخــــه‌اخستنه مخکنی مجله .

۳٤ـ د ابن سینا دبین المللـی‌غونډی په نما نځنه کـی ۱۳۵۹هـ ش په کابل کی جوړه شــــوی وه‌برخی اخستنه .

۳۵ـ د خوشحال در یم سیمینارچـی ۱۳۵۸ هـ ـ ش کال په کابل کی جوړ شوی و ، د خوشحال‌خان‌په شعر کی انتقاد ی پانګـه په‌نوم مقاله لوستی وه عرفان مجله ۳ـ۵ ګڼه ۱۳٦۰ مخ ٦٤.

۳٦ـ د میافقیرالله جلال آبادی‌دمړینی دوه سوم تلیـــــن سیمینار ۱۳۵۹ کال په کابل کی جوړ شوی‌و(آیا شرح‌مثنوی از میا فقیر الله است ؟ )

لوستی وه مقالات‌سیمینار دوصد مین سال وفات میافقیر الله جلال‌ـ آبادی با هتما م ع حسین فر منـد اکادمی علوم افغانستان‌ګستنر دلو ۱۳۵۹ .

۳۷ـ دسعدی د بوستان دپښتوترجمی پنځه سو مه‌کالیزی ۹۰۳هـ ق په ویاړ د زر غونی یاد سیمینارچی په ۱۳٦۲ کال کی جوړ شو ی

ود زرغونی د عصر سیاســـــی اواجتماعی جوله تر عنوان لانـــد ی مقاله لوستی ده زر غو نی یا ددولتی‌مطبعه ۱۳۶۲.

۳۸ـ د کوشانیانو دریم‌سیمینار۱۳۶۱ کال کی جوړ شوی وګډون باستا نشناسی شماره اول سا لچهارم سنبله ســـال ۱۳۶۱ هـ ـ ش .

۳۹ـ انقلابی ادبیاتو په نـــوم‌سیمینار چی د علوم اکاد یمـــی او لیکوالو اتحاد یی له خواپه ۱۳۶۲ـ کال کی جوړ شوی و ، دتاریخی غور ځنګونو سیمه دافغا نستان تراستقلال ۱۹۱۹ م تر عنوان لاند ی مقالی لوستنه .

اروا ښاد لوی استاد عبدالحی حبیبی په هغو سیمینار و نـــــو کنفرا نسو نو او سمپو زیومو نـــو برخه اخستی ده ، هغه شوی ده چی د ټولو یادو نه وشی ، که‌کوم‌سیمینار او کنفرانس پاتی شـــوی وی ،د هغی په یادو نه نه وی‌شوی‌او یابه زه‌د هغو په پیدا کیدو نه وم بریالی شوی هیله ده چی زمـــاعذر به ومنی .

# لوی استاد پوهاند علامه حبیبی

## په افغانستان کی د پښتو تحقیقی متونو د تهیې چاپ او نشر

### بنسټ ایښودونکی

که څه هم د پښتو انتقادی او تحقیقی متونو نشر له افغانستانه د باندی او خصوصاً په اروپا کی اوږده سابقه لری، خو زموږ په هیواد کی دغه کار ډیر پخوانه دی پیل شوی. برنهار ډورن (۱۸۰۵ـ ۱۸۸۱ع) په خریستو ماتی ( طبع ۱۸٤۷ع پترز بورگ ) او هانری جارج راورتی (۱۸۲۵ـ ۱۹۰٦ع) په گلشن روه (طبع ۱۸٦۰ع هر تفرد) کی چی درحمان بابا (۱۰٤۲ـ ۱۱۲۸هـ ،ق) د دیوان کوم انتخابات خپاره کړی دی تحقیقی بڼه لری (۱).

خو کله چی لوی استاد علامه پوهاند حبیبی (۱۳۲۸ـ۱٤۰٤ هـ،ق) د پښتو متونو تهیې ، چاپ او نشر ته لاس ور وغځاوه نو په افغانستان کی د تحقیقی متونو خپرول بیخی نوی او زموږ د متن خپرونی په بهیر کی یو اوښتون و. کله چی لوی استاد پوهاند حبیبی د متونو په برابرولو پیل کاوه، نو زموږ په هیواد کی زما د معلوماتو له مخی صرف دوه پښتو متنه خپاره شوی وو.

د عبدالقادرخان ختـک ( ۱۰٦۳ـ ۱۱۲۵ هـ ، ق ) یوسف زلیخا د (۱۱۱۲ هـ،ق نظم) متن په یو زرو ـ دری سوه پنځلس هـ،ق کال(۲) او د میر محسن قندهاری (یو زرو دری سوه یو څلو یښت هـ،ق مړ) د مزاـ راتو درسالی متن په یوزرو دری سوه دوه ویشت هـ،ق کال په کابل کـی چاپ شوی وو (۳) . دغو متونـو تحقیقی او انتقادی بڼه نه در لـوده بلکی محض دواحدو نسخو له مخی تهیه شوی او چاپ شوی وو.

اما لوی استاد مرحوم علامه حبیبی چی په متن څیړنه پیل وکړ، نو یی

دمتنونو دنشر هغه زاړه روشونـه(چې صرف دیوی نسخی له مـخې به بې‌له مقدمی او شروحو خپریدل)پرینبودل اود معاصری متن ځیړنی له دودونو سره سم یې دغه‌چارته‌توجه وکړه ، زه به‌په‌دی ځیړنه‌کې دلوی استاد دغه ډول کارونه یوځه‌مفصل وڅیړم، البته داهم بایدیاده کړم چې زموږ استاد مرحوم‌پوازې‌پښتنو متون نه‌دی تهیه کړی،بلکې دپارسی زړو متونو په تهیه‌اوچاپ‌کې‌یې هم‌دقدر وړ خدمتونه‌کړی‌دی.

زه لومړی داستاد دپښتو متونودخپرولو په هکله وغیږم، اوبیا یې د پارسی متو نودچاپ په‌باب خبری‌کوم .

## ۱ــ پښتو متون :

لوی‌استاد دپښتو متونو دخپرولواو چاپ‌ته‌دبرابرولوپه‌لړ کې‌لومړی‌دپښتو دلوی او عظیم شاعر خو شحال‌خان‌خټک (یو زرو دوه ویشتـ‌یوز رو سل هـ،ق)دکلیات دانتقادی‌اوتحقیقی‌متن برابرولو ته مخه وکړه. استاد دکلیات دغه متن دځلو رو خـطـی‌نسخو اویوی چاپی نسخی له مخې تهیه کړی دی .

دکلیات په‌دی چاپ کې غز لیات،قصاید ، ربا عیات،قطعات اومتفرـ قات راغلی‌دی‌چې دمتن ټول مخونه‌یې‌یوزرو سل دی. استاد تو ضیـح طلب موارد په حاشیو کې شـرح‌کړی دی ، په‌پیل کې یې په‌مقدماتی ډول دمتن په‌تر تیب کې دخپل کار په سیستم خبری کړی دی،اوبیایې ۸۲ مخه علمی مقدمه پر کښـلی ده‌په‌دی مقدمه کې استاد دخـو شحال په ژوند او آثارو مفصلی خبـر ی‌کړی دی. دخو شحال په‌باب‌داستاد دغه ځیړنه دخو شحال پـو هـنی‌لپاره عمده او اساسی مواد جوړوی ډیری برخې یې اوس هم دمننې اومراجعی وړ دی دکلیات په‌پای کې یې ۲۸ مخه دکلیات نادر کلمات‌اولغات مردف راوړی دی.

استاد دخو شحال دکلیات پـه‌ترتیب یو کال کار کړی دی،په‌دی باب داستاد خپلی خبری دادی: «ماچې په‌کلوکلو دغه ارمان پـه زړه کې درلود، ژر می ددغه کتا ب‌ډیری قلمی اوچاپی نسخی له‌هری خوا سره را ټولی کړی، او تقریباً یوکال می دشپی‌اوورځې زیاروکینبر چې ټوله نسخې می‌سره مقابله‌کړی‌او یوجامع او بشپړ اثر می پښتنو ته وړاندی کړی» (٤) دلوی استادپوهاند عبدالحی حبیبی له خوادخان خوشحال خان دکلیات دغه چا پد «خوشحال مرغلری»په نامه‌دکندهار دطلوع افغان داداری له خوا پـه‌یو زرو دری سوه‌اوه لس هـ،ش‌کال

تر سره شوی دی . البته دلته بایددا یادونه وشی ،چی دخان کلیات دلوی استاد ترچاپ دمخه دری ځله نور هم چاپ شوی و، خوهغه چاپونه تحقیقی او انتقادی نه وو،اود خا ن دکلیات انتقادی متن لومړی ځل لوی استاد پوهاند حبیبی تهیه، چاپ اوخپور کړ .

دوهم پښتو متن چی استادتهیه او چاپ کړی دی، هغه دلوی خان دزوی عبدالقادر خان ختک د یوان دی ، دغه دیوان داستاد تـر چاپ دمخه مستقل نه و چـــاپ شوی ،اواستاد لو مړ ی ځل په تحقیقی ډول فرهنگی حلقوته وړاندی کړ. استاددغه متن ددو خطی نسخو له مخی تهیه کړی دی (٥ )٣٧ مخیزه علمی مقدمه اوپه پیل کی یی ضـروری یادونی پر کښلی دی ،دیوان ٢٢٨ مخه دی، اوپه پای کی یی ٦ مخه نادر لغات مردف راوړل شوی دی دعبدالقادرخان دیوان په یوزر و دری سوه اوه‌ـ لس ه،ش کال دقندهار دطلوع افغان په مطبعه کی چاپ شوی دی.

لوی استاد علامه حبیبی په یوزردری سوه نولس ه،ش کال له پښتو ټولنی دلوی احمدشاه بابا(یوزریوـسل شپیته ـ یو زرو یو سل شپږ اتیا ه،ق) دیوان خپور کړ. دغـه دیوان هم دمخه نه و چاپ شوی ـ لوی استاد داحمدشاه بابا ددیوان متن ددریو خطی نسخو له مخی برابـر کړی دی (٦) دغه دیوان دلوی احمد شاه بابا په نامه ٤٠٤ مخه خـپور شوی دی ،په پیل کی یی له ضروری یادونو سر بیره (١٦٢) مخه علمی او جامع مقدمه هم پری لیکلی اوپه نورو مخو نو کی یی دبابا وینا راغلی تر وینا وروسته داعلامو فهر ست راوړل شوی دی .

داحمد شاه بابا ددیوان چـاپ پخپله یوه لویه کامیابی اوافتخارو، چی الله تعالی دلوی استاد نصیب کړ ، ددغسی بریو اوافتخار گټلو په لړ کی استاد ددی متن تر چاپ وررو سته دیوه بل قدیم اثر په چاپولو ابدی افتخار وگاټه ، اودغـه ویـاړ استاد ته دمحمد هوتک دپټی خزانی دچاپ او نشر له لیاری ورپه برخه شو .

لوی استا دعلامه حبیبی دیوزرودری سوه دوه ویشت ه،ش کال په اوایلو کی کوټی ته تشریف یووړ، اود علامه عبدالعلی کاکړ ( یوزرو دوه سوه نه اتیا ـ یوزرو دری سوه څلور شپیته ه،ق) له کتابخا نـــی یی دپټی خزانی متن کابل ته راووړ په کابل کی یی حواشی او تعلیقات پر وکښل ، سریزه یی پر وکښله، او همدارنگه ددغه کتاب دنثراو نظم په باب یی دوی هر اړخـیزی او ممتع مقا لی وکښلی، (٧)اودکتاب متن یی په پار سی ترجمه کړ،چی ددوی له ترجمی، خر گندونو،لمنو

نبشلونو ، نو مليكونو اوګنهو اضافوسره دغه مهم متن (لومړی ځل ۱۳۸۵ مخونه )په‌یوزر و دری‌سوه‌درویشت هـ.ش کال دپښتو ټولنې له خوا خپورشو .

خنګه چې دپټې خزانې هماغه یوازینی مخطوطه (اوس په ملی آرشیف‌کې)په‌لاس کی‌وه، نوځکه‌دغه‌متن دیوی متا خری نسخې له‌مخې تهیه شوی دی.

متن پوهان دیوی او متاخری نسخې له مخې دیوه زاړه متن‌په په تصحیح او تدوین کې دمتن‌پوه‌او مصحح ستو نزو ته ډیر متو جه دی ځکه دغه کار خه آسانه خبره نه‌ده‌مګر زموږ لوی استاد دمتن پوهنې له ټولو اساساتو سره سم‌ددغه‌متن له تصحیح او تدوین اوترتیب څخه په بریالیتوب سره‌وتلی دی،دمحمدهوتك (یوزروپنځلوراتیا هـ،ق‌زوګړی) پټه خزانه (تذکرة الشعراء )دخپل اهمیت ، مقبولیت او ضرورت له امله تر لومړی چاپ وروسته دوهم‌ځل په یو زرو دری سوه نه‌دیرش هـ.ش کال دپوهنې وزارت دتالیف‌او ترجمې له‌خوا دریم‌ځل په یوزرو دری سوه څلور پنځوس هـ،ش کال داطلاعاتو او کلتور وزارت له خوا چاپ شوه. چې دا دریم چاپ یې‌څو مزیتونه لری، یو داچې په‌دې چاپ کې اصلی نسخه په عکسي‌توګه ورسره چاپ شوی‌ده، دوهم داچې لوی استاد پوهاند حبیبی‌پری‌یوه نوی علمي‌او تحقیقي‌مفصله‌مقدمه کښلی‌ده ، چې دتیرو دوو چاپو نـوله اضافو او څر ګندونو بر سیره نوری زیاتې څیړ نې او خبری لری،پټه خزانه څلورم‌ځل په یوزرودری سوه‌اوه‌پنځوس‌هـ،ش کال کی‌دکابل پو هنتون دژبو اوادبیاتو دپوهنځی له‌خوا خپره شوه له‌دی چا پ سره‌ددریم چاپ دپارسی مقلمی پښتو ترجمه هم مله‌ده. اما دتیروچاپو نوڅرګند ونی او پارسی ترجمه‌ورسره نه‌دی راغلې.

پټه‌خزانه‌د استاد حبیبی دچاپونو له مخې په روسی ، انګریزی ،آلمانی ژبو بشپړه ترجمه شوی، او بات‌یې‌عربی،اردو ،آلمانی ،فرانسوی انګریزی او روسی ژبو ته‌هـمور انتقال شوی دی .(۸).

دغه ډول لوی استاد پو هاندحبیبی د لوی خان خوشحال خان ختك د سو اتنامې متن هم‌په تحقیقی ډو ل چاپ ته آماده کړی‌دی.

که څه هم سوا تنامه لومړی ځل سیدرسول رسا په ارمغان‌خوشحال ۱۹۶۵ ع کال چاپ کړی ده ،او بیا مر حوم استاد دوست محمدخان ـ کامل مومند(۱۳۵۹هـ.ش مړ)په‌تاریخ مرصع(۱۹۷۴ع) کال‌کی‌چاپ‌کړه.

خو دخوشحال خان ددری‌سوم تلین‌دبین الملل‌سیمینار ددرنا و ی له‌پاره ددغه اثر د مستقل چاپ غو ښتنه هم‌وشوه څکه دخا ن د غه اثرتر هغه و خته مستقل نه‌و چا پ شوی.

لوی استاد دغه متن په معاصره تحقیقی شیوه له مفیدو څرگندو نو او شرو حو سره چاپ ته آماده کړاو یوه مفصله علمی مقد مه هم لوی استاد پر کښلی ده (۹)

دغه متن په ۱۳۵۸ هـ. ش کال‌د افغا نستان دعلو مو اکادمی دژبواو ادبیاتو مرکز چاپ کړی دی.

بل‌پښتو متن‌چی‌لوی استاد پوهاند حبیبی چا پ‌ته آماده کړ ی . هغه د سلیمان ماکو د تذکره‌الاولیا ـــ (۶۱۲هق حدود تالیف) څو پا ڼی دی دغه متن لوی استاد لو مړی ځل‌ددیار لس سوه نو لسم هـ. ش کال په کابل کالنی (۱۰) کی او بیا دپښتانه شعرا په‌لو مړ ی ټو ك کی (۱۱) چاپ‌کړی. دغه دوه چاپو نه ددغه متن ضمنی چاپونه وو .

خو کله چی په دیار لس سوه یو شپیتم هش کال کی دافغا نستان دعلو مو اکاډ می دژبو او ادبیا تو دمرکز له خوا دامیر کروړ سوری (یوسلو څلور پنځو سم هـ.ق مړ ) دمړینی دوو لس سوه پنځوسم‌تلین دنمانځل کیدو ترتیبات نیول کیدل نو پوها نو داتجو یز وکړ چی د تذکرة الاولیاء ددغو څو پاڼـو، نقل او اصله خطی نسخه اوورسره دی‌ددغه اثر په‌با ب دلوی استا د "تحقیقا ت‌دسر یز ی او تعلیقا تو په دود ورسره مله چاپ شی اودغه څو پاڼی دی دیوه ځا نگړ ی اثرپه تو گه چاپ او خپری شی .

لوی استاد حبیبی دی یوه نو ی سریزه هم پروکاږ ی . لوی استاد مرحوم دغه کاروکړ او یوه نو ی سریزه (۱۲) یی هم پرو کښله.

دغه متن په همدی تو گه پـه دیار لس سوه یو شپیتم هش کال دافغانستا ن دعلو مو اکاډ می دژبو او ادبیاتو دمرکز له خوا خپـور شو .

**۲ ـ پارسی متون:**

هسی چی لوی استاد پو ها نـد حبیبی د پښتو ژبی او اد بیا تـو متون په تحقیقی ډول چاپ‌ته آماده کړی دی. دغه راز ددوی په زیار دډیرو کار آمد او نایابو پارسـی‌متو نو تحقیقی او انتقادی بڼی لـه مفصلو شرو حو او له حوا شیـ و سره چاپ ته آماد ه او چـا پ شوي دي ،استاد په دی برخه کی‌هم تر هر چازیات حقداراو ددرناوی

او قدروړ دی.

کوم پارسی متون چی ددو ی په زیارچاپ شوی دی، هغه بەزه لا ند ی گرانو لوستنو نکو ته معر فی کړم.

**الف ــ طبقا ت ناصر ی :**

طبقات نا صر ی دهیواددنومیالی مورخ قاضی منهاج السراج جوز ــ جانی تالیف دی ، چی په شپږ سوه اته پنځو سم ه.ق کال یی تا لیف کړی دی . دغه کتا ب دغـــــور دشنسبانی شاهانو پەباب له ډیرو معتبرو آثارو څخه گڼه شی هم‌د غوری افغانی شا هانواو خصو صا دغوری پښتنو تاریخ ډ یر ښـــــه روښانوی.

لوی استاد علا مه حبیبی لــــه دیار لس سوه شلم هش کال نەتر دیار لس سوه پنځه ویشتم ه ش پوری ددغه متن په تصحیح ،تحشیه اوتعلیق بوخت و (۱۳) اودد غەمهم تاریخی اثر لومړ ی ټو ك پەنو لس سوه نهه شلویښتم عیسو ی کا ل پەکوټه اودو هم ټوك په نو لس‌سوه شلور پنځو سم ع کال په لا هورکی دډیرین چاپ لەلیاری چا پ اوخپاره شوی دی .

طبقات نا صر ی دو هم ځــــل له څه زوایدو سره پەکابل کی‌خپور شو .ددغه چا پ لومړی ټو ك پنځه سوه یو مخه دکابل دپو هنی پـــه مطبعه کی دتاریخ ټو لنی له خوا په دیار لس سوه دوه شلویښتم هش کال چاپ شوی دی.ددغه ټو ك په لومړیو پنځو مخو نو کی دلومړ ی چاپ مقد مه اود لوی استادیادونی چاپ شوی لەشپږم مخ څخه دکتاب متن پیل شو ی‌دی.

دوهم ټوك یی چی په دیار لس سوه دری شلو یښتم هش کا ل د تاریخ‌ټو لنی له خوا په دو لتـــــی مطبعه کی پەپنځه سوه شپږ مخونو کی چاپ شوی دی. په دوه سو ه یوویشتو مخو نو کی یی دکتا ب متن له دوه سوه در ویشت څخەتر شلور سوه دری شلویښتو مخو نو یی د لوی ا ستاد له خـــوا کښل شو ی تعلیقا ت او پەشلور سوه ــ شلور شلو یښتو ــ پنځه ســـــوه شپږو مخو نو کی‌یی فهر ستو نه راغلی دی.لوی‌استاد علا مه حبیبی ددغه متن په تحشیه او تعلیق کـــی له دوه سوه دیر شو مرا جعو څخه استفا ده کړی ده . استا د دطبقات نا صر ی دمتن پەترتیب کی لەیوی بشپړی نسخی ، دراور ټی‌له چاپی نسخی او همدا رنگه دد غه کتا ب له څمنو چا پی منتخبا تـــو څخه استفا ده کړي ده.

**ب- طبقات الصو فيه :**

دغه کتا ب دشیخ الاسلام خواجه عبد الله انصار ی هروی (دری‌سوه شپږنوی‌یم نه‌تر څلور سوه یواتیایم هق) اما لی دی چی له څلورسوه یواتیایم‌هق ورو سته تا لیـــف شوی دی. دطبقا ت الصو فیه متـن لوی استاد پو هاند عبد الحـــی حبیبی دکلکتی او استا نبو ل د دریو خطی نسخو له مخی تهیـــه کړی دی او له‌یوی جا مع مقد می‌او تعلیقاتو سره په دیار لس سو ه‌یو څلویښتم هش کال دتاریخ‌تو لنی له خوا په‌کابل کی چاپ شو ی **دی.**

پر طبقات الصو فیه لوی استاد دری څلو یښت مخیزه مقد مه‌کښلی ده. دکتا ب متن په پنځه سوه اویامخونو کی را غلی دی له پنځـــه سوه یو اویا نه تر اووه سوه‌در ی دیرشو مخو نو کی یی تعلیقات راغلی دی چی پدی تعلیقا تـــوکی دفهر ستو نو په‌شمول‌دستوری نکات تشریح شوی دی .

لوی استاد ددغه متن تحشیـــه تعلیق اود مقد می په‌کښلو کی له یوسلوپنځه اویا ماخذو نو څخـــه ګټه اخیستی ده (١٤)

**ج- صد میدا ن :**

دغه کتا ب هم دخوا جه عبدالله انصار ی هر وی له امالیو څخه دی چی دڅلورسوه اته څلو یښتم هق کال په محرم کی یی په‌لیکلو پیـل شوی دی .ددغه کتا ب په باب ویل شوی دی:«صد میدا ن از کتابهای تصو ف تشر یعی پیر هرا ت‌است که مرا حل سیرو سلو ك رااز توبه شروع‌و به‌بقا ختم میکند و در هر میدا ن استدلال از آیا ت قرآ نی میاورد» او لوی استاد علامه‌حبیبی دلیکلو دکال په با ب په مقد مه‌کی کښلی دی : « این کتاب از نفیس ترین ووجیزه ترین آثار تصو ف اسلا می در فارسی که شاګر دی‌از تلا میذ حضر ت شیخ الا ســلا م خوا جه عبد الله انصار ی آ نرااز ګفتار هاو اما لی وتقا ریر استـاد انشاء فرموده وبه‌تاریخ اول شهر مـــحر م سنـــه ٤٤٨ هـــجری نو شتن آنرا آغاز کـــر د ه است (١٥) .

لوی استاد دصد میدا ن متن ،د استاد بور کوی دچاپی نسخـــی (نو لس سوه څلور پنځو سم ع کال چاپ) له مخی په‌نو ی ډول له نویو شر حو اوځیږ نو سره چا پ ته‌تیار کړ ی دی ، البته دبور کوی چاپ د دوو خطی نسخو له مخـــی چاپ ته آماده شوی‌و. دغه کتـا ب

په‌وړه کچه دوه سوه شپاړ س مخه په‌دیار لس سوه یو خلو یښتم ،
ه.ش کال دملی دفاع په مطبعه کی‌دوخت دمطبوعاتو د مستقل‌ریاست
له خوا چاپ شوی دی او په پیل کی‌یی دلوی استاد پو ها ند حبیبی
یوه‌ځوار لس مخیزه علمی‌سر یزه راغلی ده.

## د ـ نوای معارك :

دغه تاریخی کتا ب منشی عطا محمد شکار پوری په دو لس‌سوه
یواویایم ه.ق کال کښلی دی. لوی استاد پوها ند حبیبی دد غه کتا ب
په‌باب کښلی دی :«این کتا ب که تاریخ نز دیك و قایع اوا سط قرن
نوزدهم سند ه و افغانستا ن‌است ومو لف اکثر مشا هدا ت خود را
درآن نو شته ، نمو دار خو ب ، اوضاع سیاسی و اجتما عی‌و فکری
این دیار است و اعمال و کر دا ر کسانی راکه در آنو قت بر یـــــن
سرزمین مسلط بودند ، به خو بی نمایندگی میکند»(١٦).

ددغه کتا ب متـ ن‌استاددځلو رو خطی نسخو له مخی له مفصلــــو
حواشیو ، شرو حو او تعلیقا تـو او مقد می سره چاپ ته آماده کړی
او په‌نولس سوه نهه پنځو ســــم عیسوی کال دسند هی ادبی بور ډ
له خوا په‌کرا چی کی چاپ شو ی دی. په‌پیل کی استاد نو لس مخیزه
مقدمه کښلی ده په اووه‌سوه شپږ ځلویښت مخونو کی‌یی متن چـا پ
شوی دی له اوه سوه نه‌ځلو یښتو نه‌تر نهه سوه نه‌نوی مخو نوپوری
دلوی استاد علمی تعلیقا ت را غلی له‌یوزرو یو نه تر یو زرو یو سلو
پنځلس‌مخونوپوری‌یی‌نو ملیکو نـــه چاپ شوی دی.

## ه ـ سر رشته طر یقـــــه خواجگان :

دادحضرت جامی(رح) (اته سوه‌اوړه لسم نه تر اته‌سوه اته‌نوی یم هق)
یوه کوچنی تصو فی رسا له ده چی لوی استاد علا مه حبیبی دجا می د
زوکړی دپنځه سو می کالیز ی په‌ویاړ ددوو نسخو له مخی پـــــه
تحقیقی ډول له مفصلو حوا شیـو سره تهیه کړی (١٧)او یوه یوولس
مخیزه علمی مقد مه یی هم پر کښلی ده . دغه‌رساله په دیار لس سو ه
دری ځلویښتم ه.ش کال دجا می‌دانجمن د خپرو نو له لیاری په‌کابل
کی‌چاپ او خپره شوی ده.

## و ـ زین الاخبار:

زین الاخبار دابو سعید عبـــــد الحی بن الضحا ك ابن محمود ـ
گردیز ی تالیف دی . دغه کتا ب دځلور سوه دوه ځلو یښتم نه تر
ځلور سوه دری ځلویښتم ه.ق په‌شاوخوا کی لیکل شوی‌دی او لوی

استاد دغه قدیم متن په دنیا کی ددغه متن دمو جودو دوو خطی نسخـــو (بریتانیا) له مخی تهیه کړی دی . مفصل حوا شی ،یوه مقد مه ، ا و تعلیقا ت یی پر کښلی دی فهار س یی ور تهیه کړی دی . په پیل کی د استاد شپږ مخیزه مقد مه را غلی ده. متن یی دوه سوه نهه نو ی مخه دی.

تعلیقا ت او فهارس یی دو ه پنځوس مخه دی په پای کی داستاد سعید نفیسی مر حوم او عـــلامـه قزو ینی څه یادو نی هم را غلی دی. دغه کتا ب په دیار لس سوه اووه څلویښتم ه،ش کال د آفیسټ لـه لیار ی په تهرا ن کی چاپ اوخپو ر شوی دی. لوی استاد د خپلـــی مقد می په یو ځای کی کښلی دی : «این کتا ب که دارای مبا حث و نکا ت بسیار کار آمد و مغتنـــم تاریخی و انشا ی روا ن و لطیـف دری است ، تاکنو ن جز یك فصل آن به طور یك متن کا مل نشر نشده بود و اربا ب ذوق و دانش همواره خواها ن بودند که تمام متن کتا ب زین الاخبار را در دستر س داشته باشند... راقم این سطو ر عبد ـ الحی حبیبی چند سا ل قبل عکسهای هردو نسخه مذ کور را در فلـــم بدست آورد . وحیف دانست که چنین کتاب سود مند طبع و نشر نشود و نسخه نخستین را که اصیل تر بود اساس کار خود قرارداد و اختلاف نسخه دوم را در پاور قی آن به علا مت (ب) ضبط کرد بـــر لغا ت و کلما ت و مطا لب آن شر ح و تعلیق را از روی آثار دیگر وکتب مولفا ن متقد م و متا خر نو شت)

## ز ـ السواد الاعظم :

دغه کتا ب په عر بی ژ به ابو القاسم اسحاق بن محمد بـــــن اسماعیل بن ا برا هیم بن زید حکیم سمر قندی کښلی دی . دغه عر بی متن بیا د دری سوه اویایم هق کال په شاو خوا کی دامیر نو حساما نی په غوښتنه فارسی شوی دی . د غه قدیم فارسی متن زمو ږ مر حو م لوی استاد د دوو خطی نسخو له مخی په انتقاد ی او تحقیقی تو گه له مفیدو حوا شیو سره چاپ ته آماده کړی دی.

دالسواد الاعظم متن دوه سو ه پنځوس مخه په دیار لس سوه اته څلو یښتم ه.ش دبنیاد فر هنگ ایرا ن له خوا په تهران کی چا پ شوی دی . پردی متن لوی استا د مر حوم حبیبی یوه څوار لس مخیزه علمی مقد مه کښلی او په پای کی څلیرو یشت مخیز تعلیقا ت اوفهر ـ ستونه ور سره مله شوی دی .

دد غه کتا ب په با ب لوی استاد په خپله مقد مه کی یو ځـــــا ی کښلی دی:

«اهمیت این کتا ب به دو چیز است، نخست ارزش ادبی آن که یکی از کهن ترین نثر ها ی در ی است... دو دیگر ارز ش فکـری و تاریخی کتاب است که محققا ن و پژو هند گان رابه کار آید .وکسانی که تاریخ فکرو عقا ید و او ضـــا ع عقلی و روحی را درین سر زمیـــن کنجکاوی وپژو هش کنند می توا نند ازآن سود برند » (۱۹).

## ح- فضایل بلخ :

دغه کتا ب په شپږ سوه لسم هق کال شیخ الا سلا م صفی المـــلة والدین ابوبکر عبد الله بن عمر بن محمد بن داود وا عظی بلخی پـــه عربی ژبه کښلی دی او پارسی ، ترجمه یې په شپږ سوه شپږ اویا یم ه.ق کال عبدالله محمد بن محمـــد بن حسین حسینی بلخ ی ترسر ه کړ ی ده. ددغه کتا ب تحقیقی او انتقادی متن لوی استاد پو ها نـــد عبد الحی حبیبی د دریو خطـــــی نسخوله مخی له مفصلو شرو حـــو مفیدو تعلیقاتو ،فهارسو اومقد می سره چاپ ته آماده کړ ی اوپه دیار لس سوه اته خلو یښتم هش کا ل په تهران کی چاپ شوی دی .

ددغه کتا ب دترتیب په باب استاد کښلی دی : «کتاب فضایل بلخ که اینك بار او ل به طور متن کا مـل تقدیم خوانندگا ن گرا می میشود، هنگا می شنا خته شد که شفر در جلد او ل منتخبا ت فارسی درسنه هجده صدو هشتادو سه میلا د ی اقتباسا تی از آ ن در پار یســـــس چاپ کرد.

نسخه کتابخا نه ملی پاریس که بنیاد کار شفر بود ، در حدو دچهل صفحه در آخر نا قص استو مـــن میکروفلم آنرا درسنه سیـــــز ده چهل وپنج ش بدست آورد م وبرای ترتیب این متن مبنا ی کار خو د قرار دادم ،ولی از یك متن نا قص مغلوط تکمیل آ ن دشوار مینمو د، تاکه سرا غ دو نسخه خطی آ ن در کتابخانه لنین گراد اتحاد جما هیر شو روی دریافتم و ما یکرو فلمهای آن بدست آمد . و از روی هر سه نسخه این متن تکمیل شد»(۲۰) ددغه اثر په پیل کی دلوی استاد مقد مه بیا متن او ور پسی تعلیقات اوفهر ستو نه چاپ شوی دی دغه کتا ب خلور سوه اتیا مخه پـــــه مناسبه قطع چاپ شوی دی.

**ط ـ شرح بیتین مثنوی :**

دغه متن دمولا نا جلال الد یـن بلخی( شپږ سوه څلور م نه تر شپږسوه دوه اویایم هق) دمثنو ی دبیتینو شرح ده چی مهر دل خا ن مشرقی (دولس سوه دو لسم نـه تر دولس س سوه یو اویایم هق) په خوږه مثنوی و یلی ده . دغه مثنوی لوی استاد پو ها ند حبیبی د یوی نسخی له مخی چاپ ته برابره کړی ده(۲۱) او پر متن دده له حاشیواو له یوی لنډ ی مقد می سره یواز ی متن څلویښت مخه په دیار لس سوه یو پنځو سم هش کال دتاریخ ټو لنی له خوا چاپ شوی دی .

**ی ـ حد یقة الحقیقه :**

دحضرت حکیم سنا یی له مهمـو تصو فی آثارو څخه یوه حدیقه ده چی فخری نا مه او الهی نا مه یی هم بولی. ددغه کتا ب متنونه خو له پخوا تهیه شوی وو مکردیوه انتقادی متن دبرابرولو کاریی دحکیم دزو کړ ی دنه سومی کالیز ی په و یا ډ پـــه دیار لس سوه شپږ پنځو ســـم هش کال لوی استاد پو ها ند عبد الحی حبیبی ته وسپارل شو.

استاد دد غه متن برا برو لو ته ملا وتړ له اود دوو معتبرو چا پی ا و یوی معتبری خطی نسخی له مخی یی دغه کار پیل کا (۲۲) اوله ډیرو مفصلو شرو حو سره یی دد غه اثر یوزرو یو سلو اویا بیته چـــا پ ته آماده کړی وو ، چی دسیمینا ر دمشورتی کمیسیون په غو ښتنه یی دغه برخه چاپ ته وسپار له او په هما غه کال دبیهقی دکتا ب خپرولو موسسی له خوا دلوی استا د له یوی مقد می سره یو سلو څلورمخه چاپ شوه.

**ك ـ روضة الفر یقین :**

دغه متن دشیخ صالح ابو الرجا المو مل بن مسرور بن ابی سهل بن مامو ن الشاشی الخمر کی ثم .. المروی (پنځه سوه شپاړسم یـــا پنځه سوه اوه لسم هق مړ) له امالیو څخه دی.

ددغه متن په باب لوی استـــادکنبلی دی : «.. روضـــة الفـــریقین همانطوری که جا مع اقوا ل و آرا ی اهل باطن و ظاهر است ، فقه وعرفان را با هم خلط و مزج کرده و از آن معجون مر کبی که نافع حال هردو فرقه خواهد بود به وجود آور د ه است. ودر انشای کتا ب از نظر سبك شنا سی و شیوه نگار شـــ واسلوب ادای معانی همخصا یصی دیده میشود کی آ نرا حـــدفاصل و پلی بین سبك نثر نو یسی عصـــر سا ما نیا ن وغز نو یا ن و بعداز مغل توا ن شمرد »(۲۳).

دغه متن لوی استاد پو هاند عبد الحی حبیبی دیوی وا حـــدی

نسخې له مخې تهیه کړی دی . مفصل شروح ، تعلیقا ت او یوه علمي مقد مه یې پر کښلې ده. دغه کتاب دمقد مې پهشمو ل دری سوه پنځهپنځوس مخه په دیار لس سو ه نهه پنځو سم هش کال دتهرا ن پو هنتون له خوا چاپ شوی دی.

## ل ـ مختصر وا فی بقوا عد علم قوا فی:

دغه رسا له لکه څنګه چې یې له نا مه ښکار ی دقافیې په بـــا ب بحثو نه لري او حضرت جا مـــیرحمة الله علیه تا لیف کړی ده. لوی استاد مر حوم حبیبي دد غـــی رسا لې متن لومړی دملیآرشیف دیوې وا حدې نسخې له مخې تهیه کړ او مقد مه یې پرو کښلهوروسته بیاد قاآنی له نسخې اود حیدرآباد دکن له نسخو سره هم مقابله شو (۲٤) مفصل اومفید حواشي یـــې پرمتن و لیکل یادو نې او یوه علمي مقد مه دقافیې په تاریخ کې استاد پروکښله چې دچاپې نسخې دیرش مخو نه یې نیولې دی. اودرسا لې متن په دوه ویشتو مخو نو کـــې چاپ شوی دی . داستاد د غــــه تصحیح کړی متن دکتا بمجلې د ددیارلس سوه دری شپیتم کا لد لومړی شمارې دضمیمې په ډ و ل چاپ شوی دی .

برسیره پردې لوی استادپوهاند عبد الحی حبیبي په خپله کښلیدی چې دوی : دنثاری بخاری د «مذکر احباب» متن هم تصحیح او مقا بله کړی ،حوا شي او تعلیقات یې پـــر کښلې چې نه دی چاپ شوی .دغه رنګه ددوی ددې لړی بهکارونو کې دحمیدکشمیری داکبر نا مې دمتن تصحیح مقابله ،تحشیه او تعلیـــق او مقابله هم یاد شوی دی ، چې دغه کار استاد په دیار لس سوه نهم هش کال سر تهرسو لیو. مګر دغه دوه وروستي کتابونه چا پ شوی نه دی او مایې خطي نسخې هم نه دی لیدلې ، ښایي داستادد ناچاپوآثارو پهلړ کې ددو ی پـــه کتابخانه کې مو جود وي اویوو خت خدای مو قع برابرهکړ ی چیداستاد دغه دوه تهیه کړی متون هم چا پ شي.

## ۳ ـ دمتنپو هنې داصولو لهمخې داستاددغه ډول کارونه :

دمتن ترتیب ، تدوین، تصحیـــح مقابله ، تحشیه ، تعلیق او چا پ‌ته برابرول هم لکه دپو هنو اوعلو مو نورو څا نګې څا نته خا صموازین اوضوابط لري چې دمتن مر تـــب او مصحح باید پر دغو ضوا بطـو

څه‌ناڅه پوه وی او که چیری څا ن پوه نه‌کا او په خپل سر ګه و ی ضروربه‌یی کارونه تیرو تنی او سهوی و لری.

البته پدی کی شك نشته ، چی څوك کار کوی سهوه هم کوی خو داصولو پابند او په ضوا بطـــــو پوه به لږی تیرو تنی و کړ ی او هغه‌بل به ډیری.

که‌چیری موږ دخپل مر حوم لوی استاد د متن دترتیب، تدو یــــن، اوتصحیح کارونه ترڅیړ نی لاند ی ونیسو ددوی ټول دغه ډول کارونه دمتن‌پو هنی او متن څیړ نی لـــــه معا صرو روشونو سره برابر دی‌او ددوی دغه ډول کارونه اود متونوپه ترتیب‌کی ددوی روش اود تحشیی تعلیق او مقد مو په کښلود تحقیق‌ډول موږ ته درون مشال حیثـیت لری. مو ږ او آیندګا ن کولا ی شو داستاد دکارونو په اساس کلو نه کلونه دمتنپو هنی او متن څیړ نــی کارونوته دوام ورکړو.

دمتونو دتحقیق او تدو ین‌په‌با ب چی‌کوم آثار مالید لی (۲٦) اودهغو ضوابط او لار ښوو نی می مطا لعه کړی اوبیامی داستاد دمتن‌څیړ نی له‌کارونو سره پرتله کړ ی زمو ږ داستاد مر حوم روش اودکارشیو ه په‌دغه سا حه کی نها یت علمی او دمعا صر ی متن څیړ نی له‌موازینو سره برابره ده.

داستاد په زیار چی کوم متو ن خپاره شوی دی ټول یی مقد می ، شروح ، حاشیی او تعلیقا ت لری فهرستونه او دماخذو لړو نه هم‌پکی راغلی دی.

استاد څینی متو ن دوا حــــدو نسخوله مخی تهیه کړی دی چی‌دا په خپله ډیر دروند کار دی اوزموږ استاددغسی واحدونسخو له مخی هم دمتونو په تصحیح کی‌بریا لی شوی دی ، او هغه متون چی یی د شو نسخو له مخی چاپ ته برا بر کړی د هغو په ترتیب کی یی هم ډیر دمواز ینو خیال سا تلی اود متن‌څیړ نی داو سنیو روشو نوسره سم نسخه بدلونه یی په حاشیوکی ښوولی . دمتونو غلط مواردیی د نورو نسخو له مخی په متن کی تصحیح کړی، دهر کتاب اودکتاب دخاو ند اود کتاب د محتو یا تـــو په‌باب یی څیړ نی له هر متن‌سره ملی‌کړی ، دمتونو لغا ت او توضیح طلب موارد یی یاپه حاشیو کی او یا هم په تعلیقاتو کی شر ح اوحل کړی دی . داستاد له خوانشرشوی زیاتره متو ن مفصل نو ملیکو نه‌او دمراجعودماخذو فهرستو نه لر ی،

چې دغه کارونه مو بڼ ته داستـا د خیره دیوه زبر دست او نقاد متن پوه په‌توګه رابنیي . اروادی یــی بناد وی.

**ماخذو نه :**


١ ــ داسماء الحسنی د متـــن لاربنود د زلمی هیواد مــل تألیف ب،ج مخونه ددیارلس سوه نهــه پنځوسم هـ.ش کال دکابل چاپ.

٢ــ دګلشن روه مقد مه،فاضل استادپوهاند رشاد ، اته اتیا یم مخ ، د دیار لس سوه شپــــږ پنځوسم هش کال دکابل چاپ.

٣ــ دزیر ی دو هم لمبر فو ق العاده مجله دوو لسم مخ ،ددیار ــ لس سوه شپږ پنځو سم هش کال چاپ.

٤ ــ مر غلری اول او دو هم ، مخونه . د دیار لس سوه اوه لسم هش کال دکندهار چاپ.

٥ــ دعبد القا در خان خټک‌دیوان لومړی مخ د دیار لس سوه‌اوه‌لسم هـ.ش کال دکندهار چاپ.

٦ ــ لوی احمد شاه بابا (ف)مخ توضیح ، د دیار لس سوه نو لسم هش کال دکابل چا پ ، پښتـــو ټو لنه.

٧ــ پټه خزانه تعلیقا ت دوه‌سوه نهه‌پنځوسم او دوه سوه دری‌اویایم مخونه ، د دیار لس سوه درویشت هش‌کال چاپ ، کابل‌ــ پښتوټولنه.

٨ ــ د محمد هو تك یاد ، دزلمی هیواد مل په‌زیار ، پټه خزا نـــه نومړ مقاله د دیار لس سوه دو ه شپیتم کال دکابل چا پ.

٩ــ سواتنا مه له اول نه تر اوه اویایم مخه ( دغه بر خه د لـــو ی استاد کښلنی دی) د دیار لس سوه اته‌پنځو سم هـ.ش کال دکا بـــل چاپ.

١٠ــ کابل کالنی د دیارل سر. سوه نو لسم هـ،ش کال‌ګڼه،تاریخچه سبکها ی اشعار پښتو.

١١ــ پښتانه شعرا لو مړی ټوك دلوی استاد پو ها ند حبیبــــــی‌د خلور شپیتو نه تر پنځه شپیتـــو مخو نو تر منځ دتذ کری پا ڼـــی عکسی چاپ شوی دی . ددیار لس سوه شلم هش کال دکابل چا پ، پښتوټو لنه.

١٢ــ تذکرة اولا و لیا د سلیمان ماکو دلوی استاد مقد مه اوتعلیقات الف‌ــب مخونه د دیار لس سو ه یو شپیتم هش کال دکا بـــــل چاپ.

۱۳ـ طبقات نا صر ی لو مړ ی ټوك دلو مړی چا پ مقد مه دریم‌مخ ددیارلس سوه دوه څلو یښتم‌هش کال دکابل چاپ ،انجمن تاریخ .

۱٤ـطبقات الصو فیه ، اووه‌سوه پنځلسم او اووه سوه دوه ویشتم مخو نه ، د دیار لس سوه یـــو څلویښتم هش کال دکابل چا پ ، تاریخ‌ټولنه . باید یادو نه‌و شی‌چی طبقات نا صر ی داستاد حبیبـــی چاپونه په اردو ژبه هم تر جمه‌شوی او پـه‌لا هور کی داستادله مقدمو سره چاپ دی . دغه ډول داستاد له خوا دترتیب شوی دطبقا ت ـ الصوفیه متن په دیار لس ســـوه دوه شپیتم هش کال دحسین‌آ هی په اهتمام په‌تهران کی چـــــا پ شوی دی.

۱۵ـ صد میدا ن ، دلوی‌استا د مقد مه الف ـ مخ ، د دیار لس سوه یو څلویښتم هش کال دکابل چاپ.

۱٦ـ نوای معار ك تازه لو مړی مخ، دنو لس سوه نهه پنځو سم ع کال دکرا چی چاپ.

۱۷ـ سر رشته طریقه،خواجگان مقد مه یوو لسم مخ، د دیار لس دری څلویښتم کال دکابل چاپ.

۱۸ـ زین الاخبار گر دیز ی ،د استاد حبیبی مقدمه (الف ـب) ـ مخو نه ، ددیار لس سوه اوو ه ـ څلویښتم هش کال دتهران چاپ.

۱۹ـ السواد الاعظم ، داستا د حبیبی مقد مه اتم مخ،ددیار لس سوه اته څلویښتم هـ. ش کال د تهران چاپ.

۲۰ـ فضا یل بلخ ، دلوی‌استاد پوها ند حبیبی مقد مه ، ددیار لس سوه اته څلو یښتم هش کال ، د تهران چاپ.

۲۱ ـ شرح بیتین مثنوی(مقدمه) الفـب مخو نه د دیار لس سوه‌یو پنځوسم هش کال دکابل چا پ. انجمن تاریخ .

۲۲ـ حدیقة الحقیقه (مقدمه) بـد مخونه ، ددیار لس سوه شپږ پنځوسم هـ.ش کال دکابل چاپ.

۲۳ـ روضة الفر یقین د لوی استاد مقدمه شپاړسم او او لســم مخونه، د دیار لس سوه نهه‌پنځو ـ سم هش کال دتهران چاپ.

۲٤ـ مختصر وافی ، د لـــو ی استاد پو ها ند حبیبی مقد مـــــه الفـ ی مخونه د دیار لس سو ه دری شپیتم هش کا ل چا پ.

۲۵ـ ژو ندون مجله د دیار لس سوه یو شپیتم هش کال در یمه شماره دری نوی یم او څلورنوی‌یم مخونه.

۲٦ـ تحقیق و تدوین د سید محمد هاشم تهو لو نه د نولس‌سوه اته اویایم عیسوی کال دعلیگړه چاپ، تحقیق النصوص و نشر ها دعبدالسلام هارون د نولس سـوه پنځه شپیتم عیسوی کال دقا هری چاپ، اصول تحقیق وترتیب متـن دداکتر تنویرعلوی دنو لس سوه اووه اویایم ع کال دد هلی چاپ، متنی تنقید د نو لس سوه‌اوه‌شپیتم عیسوی کال دد هلی چاپ ، دخلیق انجم تالیف .

روش تصحیح نسخه های خطی ، داکتر صلاح الدین منجد دخد یوجم ترجمه دتهران چاپ ، تدوین متن‌کی مسایل ،دنولس‌سوه دوه اتیایم ع کال دپټنې چاپ.

سـيال کاکړ

## چې په مرګ دلوی استاد دخه وخت خبر سوم
## بې اختیاره اوښکې زما پر ګریوان رغلې

دعرفان دیوه سوه مړه خو دپه‌ژړایو
موږ دلوی استاد دديد پـه‌تمنا یـو
لوی فرزند د افغانانو راخـه (۱) بیل سـو
اوس زهیر په شخصیـت د پښتونخوایو
د استاد په مړینه هر یـو پریشان دی
دی چې نسته دپښتو کور ګـې ویرانـدی

● ● ●

چې‌به موږ پـه‌نازیدو حبیبي څه‌سو
ښو یارانو لوی «محصل افغاني» څـه سـو
دمرګي‌دې‌زوی په خو له سی‌څه یي وکو

---

(۱) راخه : راځخه

شین آسمانه ! عبد الحــــی حبیبی ـنه سو
بی استاده گذاره سوه خو را گرانه
ستا پرځای کشکی زه مـــړ وای لوی افغانه
* * *

پښتو ژاړی ی فریاد کاند ی استاد څه سو
لوی فاضل دپښتنو د هیوادڅه سو
د استاد ویر جن خبر مو ږپه ژړا کړو
لاتر او سه پهژړا یو استا دڅه سو
چی هر ځای وی د استا د ارواډی ښادوی
پر دنیا دی دپښتو دښمـــن برباد وی
* * *

چی یوځو ور ځی لا پاته لوی انسان وای
کار په سم به د پښتو او دافغان وای
خو ظالم مر گی بیخی چټکی وکړه
د عر فا ن په ډیوه روڼ به دا جها ن وای
داستاد په مرگ یتیم فرهنگستان سو
په بیلتو ن یی موږ کبا ب ټوله دوستا ن سو
* * *

داستاد پهلوی همت پښتـــوژو ندی سوه
په خیر نو داستاد دا گړ ندی سوه
دی خو پلار په حقیقت کـــی دپښتو و
دبابا په کتابو دااراژ و ندی سوه سوه
اوس نو ناسته پر پاتا دلوی بابا ده
سوه یتیمه دا خوابد ی پـــه رښتیا ده
* * *

په ادب کی داستاد لیکنـــی ډیری
زه خو وایم چی تر حد د ی خورا تیر ی
ده پښتو پهلو یه مینـــــه و پالله
پلو شی یی خور ی سوی ، لیری لیری
لوی استاد دادبیاتو دبستانو
دافا ضل استاد دگران افغـا نستانو
* * *

لوی استاد په پښتنو کی یو لوی غرو
را ختلی پر افغا ن باند ی دالمر و

په‌رښا یې ځلید لې پښتـــو نخواوه
لوی پوها ند دزما نې مــو دزړه‌سرو
چې ترڅو پور ی آباد دازموږ جهان‌وی
لوی خواخوږ ی بېږ و ند ی‌ددې زما ن وی

* * *

لوی استاد دپښتنې ژوندون یوباب دی
په ادب کې یې روښا نه هرکتاب دی
«پښتانه شعرا» ورك وو ده‌ژوندی کو
هر اثر یې په ادب کې یــو دریاب دی
لو ی استاد دپښتو ژ بــی‌شاه جها نو
پرو فات یې ژړید لې هــر افغانو

* * *

پریکړ سر لوی استاد یـــو انجمن و
لوی پیکر دشرا فت د خپل وطن‌و
داستاد په خیر پیدا به‌افغان نه سی
په‌و طن کې یې مثا ل درو ح‌او تن‌و
زما سلام دې ستاو لــو ی‌ادبستان ته
سر مې ټیټ ستا دپښتــو وگلستان ته

* * *

چې استاد په کې‌ښخ سو ی‌کابل جان دی
خود به‌وایو چې کابل مو دل‌وجان دی
که‌ژو ند پاته و مزار ته یې‌ورځمه
ښکلوم بې لوی مزار دا مــی‌ارمان دی
لوی استاده! په رښتیا چــی‌لوی انسان وی

* * *

پښتون خه چې نابغه د د ی‌جهان وی
چې رخصت له افغانانو لــوی‌افغان سو
بالا خر یو لوی میلمه د گورستان سو
موږ نار ی وهو« پوها نــدحبیبی»خه سو
دی په‌پټه خو له پا خه کورته‌روان سو
سیال کاکړه ! اوس بې یادموږ په دعاکو
داستاد مینه به ما ته مو ږ په چا کو

۲۲ سپتمبر ۱۹۸٤ ع

کوټه

خیرندوی عبدالله خدمتګار

# لوی استاد پوهاند حبیبی

استاد پوهاند عبد الحی حبیبی زموږ دزمانې هغه ستر افغانی لیکوال او مولف دی چې زموږ د هیواد او سیمې دادب او تاریخ دتیاره ګوټو نو په روڼولو کې یې ستر خدمتونه سرته رسولي دي. دده له آثارو، لیکنو، و یناوو او مشورو څخه زموږ دنسل لیکوالو، پوهانو او محققانو زیاته استفاده کړې ده او په دې برخه کې د ده داستادۍ حق ثابت دی.

سربیره پردې، دی یو داسې معلم او استاد هم و چې دښوونې او روزنې په چارو کې یې مستقیمه برخه اخیستې ده. دابتدایي ښوونځي معلمي، دپوهنتون استادي، دپوهنې، ښوونې او روزنې دمقاماتو اداره اولارښوونه اود درسي آثارو تالیف، هغه له شرف او ویاړه ډک خدمتونه دي چې دهغو په نتیجه کې دنوموړي پوهاند داستادۍ مقام رسماً تثبیتیږي.

په دې لنډه لیکنه کې به زه د استاد حبیبي، دپیداګوژۍ درشتې دغو فعالیتونو باندې لږه ډیره رڼا واچوم.

**دلومړني ښوونځي ښوونکي:** – استاد حبیبي لا پنځلس کلن وچې په رسمي ماموریت یې پیل کړی دی. دده لومړنی کار د کندهار په ښار کې د لومړني ښوونځي معلمي وه. نوموړی له دیارلس سوه څلورم هش نه تر دیارلس سوه شپږم هش کا لــه پورې دکندهار په ښار کې دلومړنیو ښوونځیو ښوونکی و.

**دپښتو دتدریس لومړنی هلې ځلې:**

استاد حبیبي له دیارلس سوه لسم ه.ش نه تر دیارلس سوه نولسم ه.ش پورې په کندهار کې، د(طلوع افغان) دور ځپاڼې چلوونکی و. په دې دوره کې له یوې خوا په کندهار کې دمامورینو دپښتـــو کورسونو اود هغو دښوونکــو نظارت او اداره رسماً دده پــر غاړه وه. ځکه چې دولایاتو، د ورځپاڼو چلوونکی، دمطبوعاتــو مدیران هم وو اود کورسونو اداره له دوی سره وه. په دې وخت کې دطلوع افغان دادارې له خوا د پښتو دا مهم درسي کتابونه هم

داستاد حبیبی په توجه او ز یا ر چاپ شوی دی :

**ـ سپیڅلی پښتو :**

دفارسی ، پښتو دلسو ز ر و لغتونو یو قا موس دی چی لعل محمد کاکړ او استاد حبیبی لیکلی اوپه دیار لس سوه اتلسم کال چـــا پ اوخپور شوی دی.

**ـ خود آموز پښتو :**

په دوو ټو کونو کی چی مولوی صالح محمدلیکلی او لو مړ ی ټوك یی په دیار لس سوه دیارلسم ه ش او دو هم ټوك یی په دیارلس سو ه څوار لسم هش کال په کندهارکی چاپ شوی دی.

**دپښتو ټو لنی اداره :**

ـ له دیار لس سوه نو لسم هش نه تر دیار لس سوه شلم هش ـ پوری استاد حبیبی دپښتو ټو لنی (اکاد می) دمشر توب وظیفـــــه ترسره کوی. که څه هم دی ټو لنی دپښتو ژ بی او ادبیاتو دپرا ختیا، پر مختگ او څیړ نو وظیفه په غاړه درلود له ، مگر له دی سره په ټول هیواد کی دما مورینو د پښتـــــو کورسو نو اداره او چلونه ، د غو کورسو نو ته د درسی کتابونو (پښتوکلی گانو) او موادو برابرول او چاپول هم ددی ټو لنی په غاړ ه وو اود( زیری) جر یده په هفته کی دوه ځله دپښتو ژبی د درســــــی مرستیال په توگه چاپیدله او وړ یا خپریدله.

ددی ټولو تدریسی فعالیتو نـــو او خپرو نو په سر کی استـــــا حبیبی و چی رسمایی د هغـــــو نظار ت اولار ښوو نه کو له .

**دښوونی او روز نی اداره :**

ـ استاد حبیبی له دیار لس سوه شلم ه.ش نه تر دیار لس سو ه دوویشتم ه.ش پوری دپو هنــــــی (دښوو نی او روز نی) دو زار ت مشاورو . طبعا په هغه و خت کی دیوداسی فاضل شخصیت لـــــه وجود نه ، د درسی موادو او تا لیفاتو په تیره بیا دپښتو ژ بی په برخه کی زیا ت کار اخیستل کیده. استاد حبیبی په دی بر خه کی فعاله ونډ ه اخیستی ده.

ـ استاد حبیبی له دیار لـــس سوه پنځه ویشتم نه تردیار لـــس سوه شپږ و یشتم ه.ش پور ی د کند هار دولا یت دمعـــــا ر ف (ښـــــوو نی ا و روز نـــــــی) رئیس و چی د هغه و لا یـــــت دټولو ښوو نځیو ادار ی او تدریسی چار ی یې په ښه لا س کی وی.

په دغه موده کی نو مو ړ ی د هغه ځای دلیسو دتاریخ دښوو نکی دنده هم تر سره کوله.

**دپو هنتون استاد:**

تر دیار لس سو ه درو یشتم ه.ش کاله پوری زمو ږ په هیواد کی یواز ی دطب او حقوقو دو ه پوهنځی وو چی دمعار ف و زار ت پوری مربوطوو.

په دیار لس سوه درویشتمهش کی دادبیاتو پو هنځی هم تاسیس شو. استاد حبیبی ددیپو هنځـــیدلو مړی ر ئیس په توګه د هـغه دتدریسی او اداری چارو دلا ر ښو دنی وظیفه په غاړه در لوده . له دغهو خته تر دیار لس سوه پنځه ویشتم ه.ش پوری، نو مو ړی ددغه پو هنځی رئیس ، دپښتو ژ لنی مشر اود پو هنځی دادبیاتو دتاریخ استادو .یعنی هم یی پـه دواړو مو سسو کی دژ لو تدریسی چارو نظار ت او رهنما یی کو لهاوهم په خپله د پو هنځی استادوچی بیادنورو ما موریتونو پهو جه د ا سلسله قطع شوه . له دیار لســ سوه شلو یښتم ه.ش نه تر دیار لس سوه پنځو سم ه.شپوری استاد ، دادبیاتو دپو هنځیدپښتو او دری څانګو داد بیاتو ا ستادو چی په دی لړ کی یی ډیره مود ه دپښتو د دیپار تمنت مشر تو ب هم په غاړهو . په دیار لس سو ه اووه پنځو سم هش کال دنومو ړی پو هنځی د ماستر ی د دور ید پښتو او در ی ادبیاتو استادشو چی تریوه کالهیی دغه وظیفـــــه اجرا کوله .

**درسی کتابونه :**

ـلکه چی مخکی وویل شو ل ، استاد حبیبی ، دطلوع افغاندمدیرـ یت دپښتو ټو لنی اود ادبیا تـــو دپو هنځی دریاست اود پو هنــــی دوزار ت د مشاور یت پهو ختو نو کی دټولو تدریسی کتا بو نو ا و موادو: دبرا برو لو او لیکلو لا ر ښودنه کو له . او په لیکنـــــو کی یی هم بر خـــه ا خیستله ، پخپلهیی هم په خپل قلم یو لړدرسی کتا بونه لیکلی دی .داکتا بونـــه وخت پهوخت یاپهدرسیپروګرام کی شا مل شوی دی .او یاد درســـیمرستیال په توګه تریکار اخستل شو یدی ی مو نږ د غـــه آثارپهلندې توګه معرفی کوو :

**دپښتو ادبیاتو تاریخ ، لو مړی ټوک :**

داکتاب ا ستاد حبیبی په۱۳۲۳هـ ش. کال دادبیا تو د نویجوړ شوی پوهنځیدلمړیټولګی له پـــا ر ه لیکلـــــی د ی او دد غــــه کا ل دسر طا ن په میا شت کی ، ییپهتدریس پیل وشو پـــه د ی باره کی پخپله مولف دکتاب ددریم چاپ پهسریزه کی لیکلی :

(...نوددی کتاب راټولونه او لیکنه فقط په یوه میاشت کی وسوه او دیو ، عاجل مقصد لپاره ژر ژر وکښل شو چی د ادبیاتو د پوهنځی د لومړنی خپرونی په ډول په ۱۳۲۵ ش کال دمرحوم محمد گل نوری په اهتمام چاپ او خپور سو».

دغه کتاب دوهم ځل ،دپیښور پوهنتون له پاره ، دښاغلی محمد تقویم الحق کاکاخیل په ذریعه یو څه لنډ اود پیښور دپښتو په لهجه په نولس سوه یو پنځوس م کال چاپ اود استفادی وړ وگرځید او دریم ځل دپښتو څیړ نو دبین المللی مرکز دپرانیستلو په ویاړ په دیار لس سوه څلور پنځوسم ه.ش کال دادبیاتو او بشری علومو دپوهنځی له خوا چاپ شو.

**دپښتو ادبیاتو تاریخ ، دوهم ټوک:**

په دی کتاب کی دپښتو پخوانی تاریخ تر(زرم هجری) پوری لیکل شوی او پر پښتو نظم او نثر تحلیلی څیړنه ده. دا کتاب یو ځل په دیار لس سوه اته دیرشم ه.ش کال او بل ځل په دیار لس سوه دوه څلو یښتم ه.ش کال د پښتو ټولنی له خوا چاپ شوی دی .

داکتاب په مستقیمه توگه په درسی پروگرام کی شامل نه دی بلکی یو درسی مرستیال دی چی دپښتو ادبیاتو دتاریخ استادانو او شاگردانو په پراخ ډول تری استفاده کړی ده او کوی یی.

**دپښتو ادب تاریخ :**

دادبیاتو او بشری علومو ، د پوهنځی د دریم پښتو صنف له پاره لیکل شوی اودنو موړی پوهنځی له خوا دگستتنر په ډول چاپ شوی دی ( دیار لس سوه اووه څلویښتم ه.ش) .

**دپښتو ادب لنډ تاریخ :**

دادبیاتو او انسانی علو مو ، د پوهنځی دپښتو څانگی دڅلورم صنف له پاره داستاد حبیبی تدریسی یاد داشتونه دی چی دنوموړی پوهنځی له خوا په دیار لس سوه اووه څلو یښتم ه.ش کال دگستتنر په ډول چاپ شوی دی .

**متون دری:**

دادبیاتو او بشری علوموددریم ټولگی له پاره درسی نوټونه دی چی په دیار لس سوه شپږ څلویښتم ه.ش کال دنو موړی پوهنځی له خوا په گستتنر چاپ شوی دی.

**تصوف :** او دگستتنر له لیاری د کابل دا اثر هم په دری ژبه دی اود

